

د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د
روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تألیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب
# د تاریخ د تدریس لارښود
## نهم ټولګی








د چاپ کال: ۱۳۹۰هـ ش.



**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو
د روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د تاریخ د تدریس لارښود

## نهم ټولګی

**چاپ ۱۳۹۰ هـ ش**

## ليکوالان:

- پوهنمل زلمی هوتک
- پوهنمل داکتر غلام حبيب پنجشيری
- د سر مؤلف مرستيال شير محمد رونقي
- مؤلف قديم شيرزی بابکرخيل

## علمي او مسلکي ايډيټ:

- پوهنمل زلمی هوتک

## د ژبې ايډيټ:

مؤلف عبدالقدوس زکوخيل

## ديني، سياسي او کلتوري کميټه:

- ډاکټر عطاء الله واحديار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئيس.
- حبيب الله راحل د پوهنې وزارت سلاکار د تعليمي نصاب د پراختيا په رياست کې.

## د څارنې کميټه:

- دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساينس مرکز معين
- دکتور شير علي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول
- د سرمؤلف مرستيال عبدالظاهر گلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس.

## طرح او ډيزاين:

- حميدالله غفاري
- محمد اشرف امين



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی          دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې          هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی          د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو          د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي          پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي          هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي          لکه لمر پر شنه اسمان

په سینه کې د اسیا به          لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر          وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم

## د پوهنې د وزیر پیغام

## گرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختگ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختگ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتوکیږي. څرگنده ده چې علمي پرمختگ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښايي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود داکتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودنو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده‌کړې په بهیر کې د زده‌کوونکو د فعال ساتلو لپاره گټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانگه، چې د فعالې زده‌کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو د گټې وړ وگرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده‌کوونکو له مینده او پلرونو څخه غوښتنه کیږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توگه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او برياوې ور په برخه کړي.

زموږ گران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درونه مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرگندو اړتیاوو، ملي گټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او تکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده گټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود دکتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنگه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملگرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردک

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر



فهرست

| عنوان | مخ |
|---|---|


لومړي څپرکی (فصل) .......... ۲

د ښوونې او روزنې ارزښت او د ښوونکي رسالت .......... ۲

د لومړي لوست لارښود پلان .......... ۲۱

د دويم لوست لارښود پلان .......... ۲٤

د دريم لوست لارښود پلان .......... ۲٦

د څلورم لوست لارښود پلان .......... ۲۸

د پنځم لوست لارښود پلان .......... ۳۰

د شپږم لوست لارښود پلان .......... ۳۲

د اوم لوست لارښود پلان .......... ۳٤

د اتم لوست لارښود پلان .......... ۳٦

د نهم لوست لارښود پلان .......... ۳۸

د لسم لوست لارښود پلان .......... ٤۰

د يوولسم لوست لارښود پلان .......... ٤۲

د دولسم لوست لارښود پلان .......... ٤٤

د ديارلسم لوست لارښود پلان .......... ٤٦

د څوارلسم لوست لارښود پلان .......... ٤۸

د پنځلسم لوست لارښود پلان .......... ٥۰

د شپاړسم لوست لارښود پلان .......... ٥۲

د اولسم لوست لارښود پلان .......... ٥٤

د اتلسم لوست لارښود پلان .......... ٥٦

د نولسم لوست لارښود پلان .......... ٥۸

د شلم لوست لارښود پلان .......... ٦۱

د یویشتم لوست لاربنود پلان ........ ٦٤
د دوه ویشتم لوست لاربنود پلان ........ ٦٦
د درویشتم لوست لاربنود پلان ........ ٦٨
د څلورویشتم لوست لاربنود پلان ........ ٧٠
د پنځه ویشتم لوست لاربنود پلان ........ ٧٢
د شپږویشتم لوست لاربنود پلان ........ ٧٤
د اوه ویشتم لوست لاربنود پلان ........ ٧٦
د اته ویشتم لوست لاربنود پلان ........ ٧٩
د نهه ویشتم لوست لاربنود پلان ........ ٨١
د دیرشم لوست لاربنود پلان ........ ٨٤
د یودیرشم لوست لاربنود پلان ........ ٨٦
د دوه دیرشم لوست لاربنود پلان ........ ٨٨
د درې دیرشم لوست لاربنود پلان ........ ٩٠

## سریزه

د ښوونکي دغه لارښود کتاب، هغه کتاب دی چې ښوونکو ته په ټولګیو کې د پروګرام د ښه سرته رسولو لپاره لارښوونه کوي. ددې کتاب بله ګټه داده چې ښوونکي د زده‌کوونکو د زده‌کړې په موده کې د ښوونې او روزنې له عمومي موخو څخه خبروي او آشنا کوي. دغه راز ددې کتاب له لارې ښوونکي د تدریس له څرنګوالي سره هم آشنا کیږي.

دغه لارښود په دوو څپرکو کې تنظیم شویدی. لومړی فصل یې د کلیاتو تر سرلیک لاندې د درسي پروګرام د پیژند ګلوی او دویم څپرکی یې د زده‌کړې په مفاهیمو باندې پوهاوی دی.

د سریزو په برخه کې ښاغلی ښوونکی د ښوونې او روزنې له موخو او د ښوونکي له رسالت سره آشنا کیږي. دوی زده‌کوي چې زموږ د ګران هېواد ښوونه او روزنه په بیلا بیلو اعتقادي،اخلاقي،علمي،پوهنیزو،کلتوري، هنري، مدني، ټولنیزو او اقتصادي برخو کې کومې موخې سرته رسوي، ددې موخو د سرته رسیدو لپاره بیلابیل درسي موضوعات راغلي او په بیلابیلو ټولګیو کې ښوونکی باید هڅه وکړي چې د لوست ورکولو په زړه پورې چلندونو له لارې د دغو موخو د سرته رسیدو زمینه برابره کړي.

ګران ښوونکی په دې توګه له درسي موضوعاتو، د هر لوست له ټولو موخو، د پروګرام د محتوا د زده‌کړې له موضوعاتو، په بیلابیلو ټولګیو کې د تدریس له چلندونو، د درسي سامان او لوازمو د استعمال او نورو پوهنیزو، ښوونیزو او روزنیزو کړنلارو سره آشنا کیږي. د تودو او سړو سیمو په ښوونځیو کې ددغه لارښود د بشپړ پلان د جوړولو لپاره (دورځني پلان) له منابعو او ماخذونو څخه چې د لارښود د تالیف لپاره ترې ګټه پورته کېږي، کار اخیستل شوی دی. ددغه لارښود د لیکونکو باور دادی چې کله ښوونکي د کافي وخت په نه لرلو سره د ورځني پلان د جوړولو وخت و نه لري او یا دا چې هر یو یې ددرس له اهدافو څخه یوه ځانګړې لاسته راوړنه لري. په نتیجه کې د دوی د تدریس څرنګوالی یو له بل څخه توپیر مومي.

د ښوونکو په کارونو کې د سهولت د رامنځ ته کولو لپاره درسي پلانونه داسې لیکل شوي چې په ډېره ښه توګه د تدریس په اړوند د دوی اړتیاوې ورپوره کوي. دغه تدریسي کړنلاره ددې خنډ نشي ګرځیدای چې کومه کړنلاره چې دوی د کلونو په اوږدو کې تجربه کړې او مثبته پایله یې هم ورځینې اخیستې ده ،تعقیب نکړي او هغه یوې خوا ته پریږدي– بې له شکه یو ډیر ښه تدریسي میتود هغه دی چې له هغه څخه په کار اخیستلو سره د زده‌کړې عملیه تر سره شي او ښوونکي د یوې دغسې عملیې په سرته رسولو سره د زده‌کوونکو خوښې ترسره کړي.

د ورځیني پلان بله برخه د درس د متن پوښتنو، د لوست د پای سوالونو او یا د فصل د پای پوښتنو ته ځانګړې شوه. د ښوونکو د پوهې د کچې د لوړو لپاره د هر پلان په پای کې اضافي معلومات راوړل شوي دي. دغه لارښود له ستونزو تش نه دی، ګران ښوونکي د تعلیمي نصاب مرکز ته د خپلو اندونو په را استولو سره کولای شي

په پای کې ګران هېواد افغانستان ته د نیکو، ایمان لرونکو او د هېواد په وړاندې د مسوولو کسانو په روزنه کې ښاغلو ښوونکو ته د لوی څښتن له دربار څخه د بریالیتوبونو هیله کوو.

# لومړی څپرکی (فصل)

## د ښوونې او روزنې ارزښت او د ښوونکي رسالت

مربيانو او ښوونکو هر يوه په بيلابيلو بڼو ښوونه او روزنه تعريف کړيده. ځينو ويلي دي چې ښوونه او روزنه د تيرو نيکونو د کلتوري ميراث وده .ليږد او ارزونه ده. ځينې نوربيا په دې عقيده دي چې ښوونه او روزنه په فرد کې د ټاکلو ورو ستنيو صفتونو او وړتياوو رامنځ ته کېدل دي.ځينو بيا داسې عقيده څرګنده کړيده چې ښوونه او روزنه د پټو استعدادونه ښکاره کېدل او يا په فعل باندې د استعدادونو بدليدل دي او ځينې پوهان بيا وايي چې د فرد اماده کول دي چې څرنګه په يوې ټاکلې ټولنې کې ژوند وکړي او له خاصو افکارو، ادابو، رسمو او عقايدو سره د هغه آشنا کول دي. دغسې يوې پروسې ته ښوونه او روزنه ويلای شو.

ځينې مربيان د وګړو بيلابيلو وجودي "مادي معنوي" اړخونو لکه: اخلاقي، هنري، معنوي،کاري،اجتماعي،عاطفي،عقلاني او جسماني لاربښوونې ته ښوونه او روزنه وايي.

جان ډيوي وايي. ښوونه او روزنه په تجربياتو باندې نوې کتنه ده او دغه راز د هغو داسې بيا جوړونه ده چې د زياتې ودې موجبات برابر کړي: دغه ټول پورتني تعريفونه صحيح دي، خو کافي نه دي. د ښوونې او روزنې مربيان د زده‌کوونکو له ښوونې او روزنې څخه زياتي تمې لري.

دوی له زده‌کوونکو څخه غواړي، ددې تر څنګه چې علم او کلتور زده‌کوي تر خوا يې د خپل هېواد له کلتور،آدابو او رسمونو سره هم پيژندګلوي تر لاسه کړي، ددې دپاره چې په برياليي ډول په خپلې ټولنې کې ګام کيږدي، بايد د اړوند ټولنې، عادات مهارتونه او ځانګړې کتنې زده‌کړي،چې په دې توګه د هغو استعدادونو او وړتياوو په ښوولو سره يو د اړتياوړ دنده چې وکولای شي اقتصادي اړتياوې يې سرته ورسوي.

د اسلام د مبين دين له نظره د ښوونې او روزنې موخه د کامل انسان روزنه ده او کامل انسان هغه دی چې د شخصيت ټول لورې يې د امکان تربريد وده وکړي. دښوونې او روزنې له بيلابيلو حقايقو او واقعيتونو څخه موخه د زده‌کوونکي د ذهن ډکول نه دي، دغه راز يو ښه زده‌کوونکی هم الزماً هغه څوک نه دی چې ټول معلومات يې حاصل کړي وي برعکس يو ښه زده‌کوونکی هغه څوک دی چې د هغه د شخصيت لورې په ټولو برخو کې وده کړي وي او دايې زده‌کړي وي چې څرنګه زده‌کړه وکړي: د ښوونې او روزنې موخه يوازې او يوازې دا نده چې وتلوزده‌کوونکو ته پاملرنه وکړي او د نورو زده‌کوونکو په وړاندې بې توپيري غوره کړي. ښوونه او روزنه مطلوب نظام ته پاملرنه کوي، ښوونه او روزنه په خپلې اصلي معنا سره د ښوونې او روزنې ټولو موخو ته چې بايد عملي شي، پاملرنه کوي. له بله پلوه يو تجربه لرونکی او پوه ښوونکی دزده‌کړې په ټولو دوروکې صحيح روزنيز اساسات د بيلابيلو درسي فعاليتونو له لارې عملي کوي.

زده‌کوونکي د نوې ځوانۍ په دورې کې ځانته ځانګړتياوې لري. په دې دورې کې زده‌کوونکي په بدني لحاظ د جسمي بدلونونو يوې نوې مرحلې ته ور دننه کيږي. د زده‌کوونکو اړيکې يو له بل سره او د عمر له پلوه په دې پيرکې يو ځانګړی انځور ځانته نيسي. په دې دورې کې د ټولنيزو کارونو د تر سره کولو لپاره د زده‌کوونکو اماده کول او د خلکو او بيلوقومونو د ادابو او دودونو پيژنه نې په برخه کې انډول د کوچنيوالي له دورې څخه زياتيږي، نوي ځوانان په دې پيرکې له عاطفي پلوه همدا چې ښه کارونه تر سره کوي او له نوروسره مرسته کوي، له دې څخه خوند اخلي. دوی ته دا هم خوند

ورکوي چې په خپلواکه توګه خپل کارونه ترسره کړي، دوی په دې مرحلې کې له دې سره مینه لري چې د طبیعت په هکله او د معنا عالم په اړوند د هغو اسرار درک او وپیژني.

په دې دورې کې د دوی هنرې مینه او د ښکلا پیژندنې حس د ماشوم توب د مرحلي په پرتله زیاتیږي. تنکي ځوانان مینه لري چې ځان په مختلفو ډولونو څرګند کړي، دوی د زده کړې لپاره بیلا بیل وختونه رامنځ ته کوي. کله کله د ځینو زده کوونکو کارونه ښوونکي ته پر زړه پورې نه وي، خو دغه وختونه له لوړ تربیتې ارزښت څخه برخمن دي. یو پوه ښوونکی تل په دې هڅه کې وي چې له همداسي وختونو څخه د زده کوونکو د شخصیت د ودې لپاره په بیلابیلو علمي،اجتماعي،اخلاقي، دیني،جسماني او عقلاني برخو کې ډیره ګټه پورته کړي.

## په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې:

د ټولنې د افرادو لپاره د زده کړې او روزنې په برخه کې د افغاني ټولنې، او د علم او پوهې د هر اړخنیز پرمختګ په پام کې نیولو سره په لاندې توګه ضروري بلل کیږي. لاندې ټکي د ښوونې او روزنې اساسي شاخصونه شمیرل کېږي.

### ۱- اعتقادي او اخلاقي موخې:

- د ایمان پیاوړتیا او د اسلام په سپیڅلو اساساتو باندې اعتقاد، پر قرآني تعالیمو او د پیغمبر(ص) په سنتو باندې او له هر ډول افراط او تفریط څخه پرته د اسلامي پوهې پراختیا
- د خدای (ج) د پیژندنې لپاره د ځان د پیژندنې د روحیې رامنځ ته کول په نفس باندې د اعتماد د روحې پیاوړتیا. او په اخلاقي ښیګڼو باندې التزام
- د نظم او دسپلین د روحیې رامنځ ته کول او د قانوني ارزښتونو رعایت کول
- د اجتماعي،تربیتې او تعلیمي ارزښتونو په وړاندې د مسوولیت پیژندنې د روحیې پیاوړتیا

### ۲- علمي او ښوونیزې موخې:

د ښوونیز بهیر په پایله کې چې د تعلیمي نصاب او له دغه نصابه پرته صورت مومي، زده کوونکي اساسي او لازمي پوهه نه شي تر لاسه کولای او لوړو فکري مهارتونو ته وده نه شي ورکولای، نوځکه لاندې علمي ښوونیزې موخې په پام کې نیولې شویدي.

دمهارتونه زده کړه او پیاوړتیا لکه اوریدل،خبرې کول، لوستل او لیکل او دغه راز د شمیرو په کار وړل او هم په رسمي او خارجي ژبوکې حسن خط د ښوونیزو مهارتونو زده کول: د استعدادونو وده د ځانی ارزونې لپاره د زده کړې په بهیر کې او د پایلو لاسته راوړل له هغو څخه.

- په علمي کلتوري او فني خواوو کې د فکري قابلیت د پیاوړتیا ژوروالی، مطالعه،څیړنه او نوښت
- د اړتیا وړ اجتماعي، فردي مهارتونو ترلاسه کول او د معاصرې تکنالوژۍ،فنونو او پوهنو زده کول
- د اجتماعي ستونزو د حل لپاره د مهارت ترلاسه کول

**۳– کلتوري او هنري  موخې:**

– د ملي کلتور او هنر پېژندنه (لاسي صنایع، ستن ګنډنه، خامک ګنډنه، اوبدنه، مهندسي رسامي،خطاطي، نقاشي، د کـــور ښکلا او نور هنرونه) او نړیوال سالم هنرونه او همدارنګه د هنرې برخې د ښکلا پېژندې او روزنه هنري استعدادونو

– د افغانستان له تاریخ،فرهنګ او اسلامي تمدن او د نورو هیوادونو له فرهنګ سره پېژند ګلوي

– د افغانستان د ښو ادابو او سننو او فرهنګ وده او د هغه د اصالت ساتل

– د فردي او اجتماعي تمرین او فعالیتونو له لارې د هنري مهارتونو پرمختیا

**۴– مدني او اجتماعي موخې:**

– د لاندې موخو تعقیبول به د زده‌کوونکو د موقف په ودې کې  د یوې کورنۍ د غړو د ځای، سیمې، ملي او نړیوالې ټولنې په توګه مرسته وکړي.

– له ملي نوامیسو څخه د ساتنې د روحیې پیاوړتیا: د اسلامي اخلاقو او حقوقو د برابری پربنسټ د کورنیو اړیکو ټینګښت

– د وروروليۍ ، سولې، تعاون، ټولنیز عدالت ملي او بین المللي یو والي د روحیې پیاوړتیا

– د خیر غوښتنې او اخلاقي فضایلو د حس وده، له جګړو سره ضدیت او له مخدره توکو سره مبارزه

– قانون ته د درناوی د روحیې پیاوړتیا او دهغه رعایت او له ټولنیزو حقوقونه پلـــوی پرتـــه لـــه دې چـــې قـــام، جـــنس، عمر،اقتصادي،اجتماعي، او سیاسي تړاو په پام کې ونیول شي

– په اقتصادي، اجتماعي،کلتوري او دیني چارو کې د ګډې روحیې پرمختګ او وده

– د متقابل پوهاوي او زغملو د کلتور د روحیې رامنځ ته کول

– د نړیوالي ټولنې د تخنیکې او علمي لاس ته راوړنو او تجاربو څخه د ګټې اخیستنې د روحیې پیاوړتیا

– د انساني کرامت احترام د روحیې پیاوړتیا او د بشري حقونو احترام

– د ښځې مقام ته داحترام د روحیې پیاوړتیا او د هغوی له حقونو څخه ملاتړ

– د لویانو،ګاونډیو، او ښاریانو د حقوقو او د مدني ټولنې د موازینود رعایت د روحیې پیاوړتیا

**۵– اقتصادي موخې:**

– له کورني اقتصاد سره د ټولنې د اقتصاد ودې داړتیا درک او دکورنۍ له اقتصاد سره د هغه تړاو

– دکار د ارزښت درک او په ګټورو کسبونو کې د بوختیا د روحیې پیاوړتیا

– له تجملي کارونو او اسراف نه د پرهیز، قناعت او سپماکولو د روحیې رامنځ کول

– په هیواد کې د اقتصادي سرچینو پیژندنه او د هغو مناسب استخراج او ورڅخه ګټه اخیـــستنه او د شـــتمنیو د ســـاتنې د روحیې پیاوړتیا

د اقتصادي سر چینو پیژندنه، د را ایستنې مناسب چلندونه، له هغو نه ګټه اخیستنه او له مالونو څخه د ساتنې د روحیې روزنه

## له ۷-۹ ټولګیو د منځنۍ دورې عمومي موخې:

هغه زده‌کوونکي چې لومړنۍ دوره په بریالیتوب سره تیروي. له غوښتنې سره سم په دې ښوونیزې او روزنیـــزې دورې کـــې شاملیږي، ددې دورې بشپړه موخه د زده‌کوونکو د مینې او استعداد په انډول د ژونـــد د مختلفـــو لارو ټاکـــل د هېـــواد د امکاناتو او اړتیاوو په پام کې نیولو سره ددې دورې موخې باید داسې په پام کې ونیول شي.

۱– د راتلونکې دورې لپاره د تیرو دورو د ښوونیزو او روزنیزو لاس ته راوړنو پیاوړتیا او وروستۍ دورې ته چمتووالی

۲– له اسلامي پوهنې سره زياته آشنايي او په اعتقادي مبانيو او اخلاقي، ديني مسايلو کې ژور فکر کول اود معلوماتو پراختيا:

۳– د لوی ښتن د زياتې پيژندنې په منظور د ځان پيژندنې د روحيې وده

۴– په درسي بيلابيلو رشتو کې د زده‌کوونکو د استعدادونو تشخيص

۵– د ژوند د چاپيريال د طبيعت د قوانينو، پوهنو، بشري پرمخ تللو تجربو په هکله د معلوماتو زياتوالی چې د ساينس او علم د اساساتو پر مفاهيمو باندې ولاړ وي.

٦– د هېواد د رسمي ژبو د زده‌کړې متوازنه وده، د مورنۍ او بهرنيو ژبو پياوړتيا او وده او د تحريري او شفاهي مرامونو په افادو کې د زده‌کوونکو د علمي سويې پرمختګ

۷– د ورورولۍ تعاون، سولې، ملي يووالي، نارواجګړو او نشه يي توکو سره ضديت، د راز راز تبعيض او تعصب نفې او زده‌کوونکو ته په ښو کارونو او په سالمو سياليو کې لوری ورکول

۸– د مسلک په انتخاب کې د زده‌کوونکو د استعدادونو مينه او ذوق او د هغوی د تصميم نيونې د مهارتونو وده

۹– د مسؤوليت منښې دروحيې پياوړتيا او په ديني، کلتوري او ټولنيزو چاروکې د زده‌کوونکو د معلوماتو وده

۱۰ د زده‌کوونکو د علمي زمينې د برابرولو او د کار او هڅې لپاره د زده‌کوونکو د مينې روزل

۱۱– په روزنيزو بهيرونه کې د ځاني سنجش د مهارتونو وده

۱۲– د خپل ځان له جسمي روغتيا څخه څارنه

# د تاریخ د زده کړې ارزښت

**۱ – تاریخ څه دی؟**

تاریخ هغه پوهنه ده چې تیرې پېښې د وخت او ځای په قید سره بیانوي. د پېښې په اړه زمان او مکان ته دقت او ځیرتیا تاریخ له افسانو څخه بیلوي، هره پېښه چې په یوه ټاکلي وخت او یوه ټاکلي ځای کې واقع شوې وي، یوه تاریخي پېښه بلل کیدای شي، د ساري په ډول: د بدر غزوه چې د هجرت په دویم کال او مدینې ته نږدې پېښه شوې ده، دا یوه تاریخي پېښه ده– دا د تاریخ دنده ده چې د هغې پېښې په اړه موږ ته معلومات راکړي، د تاریخ علم له اجتماعي علومو څخه دی، د اجتماعي علومو له مختلفو څانګو سره اړیکې لري، دغه اړیکې له ځینو علومو سره یو اړخیزې دې، لکه د کیمیا، بیولوژي، فزیک سره او له ځینو نورو علومو لکه: ټولنپوهنې، اقتصاد، بشر پیژندنې، لرغون پیژندنې او نور سره دوه اړخیزه اړیکې لري. هم د علومو دغې ډلګۍ ته مرسته ورکوي او هم موخې ته د رسیدو لپاره ورځینې مرسته غواړي، د بشری ټولني د تاریخ د پیژندنې لپاره باید څو اړخیزه مطالعې ترسره شي، دغه اړخونه عمدتاً د ټولنو کلتوري، اقتصادي، ټولنیزو او سیاسي جوړښت په خپلې لمنې کې رانغاړي. د همدې جنبو پر بنسټ کولای شو تاریخ د ټولنو کلتوري، اقتصادي، ټولنیز، تحلیلي او سیاسي تاریخ تر سرلیکونو لاندې وویشو. پوهانو د تاریخ د ښې پوهیدنې لپاره تاریخ په دوو برخو ویشلی دی:

۱ – له تاریخ څخه دمخه دوره

۲ – تاریخي دوره

د تاریخ د پېښو د پیژندنې لپاره تاریخې سر چینې مهمې دي، د تاریخي منابعو له شتون نه پرته د تاریخي حکم صدور ممکن نه دی. خطي او تحریري منابع، شفاهي، فکلوري او مادي سر چینې او تاریخې آثار د تاریخي منابعو له ډولونو څخه دي.
د منابعو تحلیل او ارزونه د منابعو په نوعیت پورې اړه لري چې د تاریخ لیکونکو د استفادې وړ دي. د تاریخ په تالیف او تدوین کې حقیقت موندنه یوه ډیرهستره ستونزه ده، د لیکوال د ذهنیت نه په تاریخي متن کې له( حب بغض) اغماض، پټونې او داسې نورو مسایلو څخه مخ نیوی د تاریخ په تدوین او برابرولو کې عمده اثر پرځای پریږدي.

**۲ – د تاریخ د زده کړې اهمیت**

تاریخ انسان له پخوانیو ټولنو او تمدنونو سره آشنا کوي. او د ژوند د ټیټو او هسکو رمزونو څخه یې خبروي د تاریخ مطالعه انسان د هغه د دودونو او ادابو له تنګ چوکاټ څخه آزادوي، مطالعه کوونکي له ځانه سره د بیلابیلو ټولنو د ژوند د راز راز سبکونو ننداره ته په مختلفو زمانو کې بیایي او ډول ډول شخصیتونه او کلتورونه راپیژني. تاریخ موږ په مختلفو ډګرونو کې د علم او تفکر د پرمختګ له عواملو سره آشنا کوي، د زمان او مکان په اوږده لمن کې د تکنالوژي وده ښيي چې تاریخ بیلابیل نظامونه او د حکومتونو بیلابیلې کړنلارې موږ ته راپیژني.
له همدې امله تاریخ د پخوانیو تمدنونو،ټولنو او نسلونو د واقعي ژوند د عبرتونو ستر کتاب دی، د دغه درس زده کړه زده کوونکو ته ددې موقع برابروي څو خپل ذهن د تحلیل ځواک ته د ټولنیز نظام په پېښو کې زیاتوالی ورکړي او په دې توګه سیاسي، اقتصادي او ټولنیز نظامونه تحلیل او نقد کړي، په خپل ژوند کې د پخوانیو له مثبتو تجاربو څخه ګټه واخلي او د هغوی له تیروتنو څخه ځان لیرې وساتي.

**۳– د تاريخ د زده‌کړې موخې:**

– د ثانوي دورې د تاريخ له مضمون د زده‌کړې څخه هيله کيږي چې لاندې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتـــې مـــوخې ترســـره کړي.

– د نړۍ، منطقې او هېواد له تاريخ سره زده‌کوونکي آشنا کړي

– له پخوانيو تمدنونو او ټولنو سره زده‌کوونکي آشنا کړي.

– په اجمالي ډول د ټولنيز ژوند له ټيټو او هسکو سره د هغوی پيژندګلوي

– د تيرو انسانانو د ژوند له سبکونو سره زده‌کوونکي آشنا شي او زده يې کړي.

– د تيرو دورو يو شمير مهم شخصيتونه زده‌کوونکو ته ورو‌پيژني.

– د اسلام د تاريخ پيدايښت او پراختيا زده‌کوونکو ته په اجمالي ډول ووايي.

– په لنډه توګه په افغانستان کې د اسلام د خپريدو او قبليدو تاريخ زده‌کوونکو ته ور زده‌کړي

– په بيلابيلو ډګرونو کې هغوی د علم او تفکر له ودې او پرمختګ سره آشنا کاندي.

– له سر چينو څخه د استفادې او د تکنالوژۍ له تدريجي ودې سره زده‌کوونکي آشناکړي.

– هغوی له هغو سياسي بيلابيلو نظامونو سره آشنا کړي کوم چې د تاريخ په اوږدو کې يې پر انسانانو حکومت کړی دی.

– زده‌کوونکي وکولای شي تاريخې مفاهيم درک او تشريح کړي.

– د زده‌کوونکو ذهني ځواک د تاريخي پيښنو د تجزيه کولو اوارزونې په اړه غښتلی شي.

– زده‌کوونکي په دې قادر شي څو د پخوانيو پوهانو له ګټورو تجربو څخه د خپل ژوند په بيلابيلو ډګرونو کې ګټه واخلـــي او دغه رنګه د پخوانيو خلکو له ناوړه کړنو څخه ځان وژغوري.

– زده‌کوونکي وکولای شي د سياسي او اقتصادي نظامونو مثبتې او منفي جنبې تحليل او بيلابيل اړخونه تر کره کتنې لاندې ونيسي.

– زده‌کوونکي وکولای شي ارتباطي مهارتونه د اوريدو، خبرو اترو او لوستلو له لارې له نورو سره ټينګ کړي.

– زده‌کوونکي ددې توان پيداکړي چې د پخوانيو له تجربو څخه په عبرت اخيستنې سره په ټـــولنې کـــې د فعـــالو او ګټـــه رسوونکو انسانانو په بڼه بدل شي.

## د ټولنيزو پوهنو په زده‌کړې کې د درسي پروګرام ليدلوری:

په درسي پروګرام کې له ليدلوري څخه موخه علمي او ښوونيزو ملاحظاتو ته په پاملرنې ســـره د يـــوې پـــوهنيزې موضـــوع زده‌کول دي. د تاريخ په زده‌کړې کې اصلي غرض او ليدلوری له تاريخي علمي زده‌کړو څخه د عبرت اخيستنه ده. له علمي ليدلوري او غرض څخه منظور د يوې تاريخې پيښې جوړوونکي عناصر دي (زمان،مکان،شخصيتونه، لاملونه) د پيښو پـــايلې او له عبرت زده‌کولو څخه منظور د يوې تاريخې حادثې نه مختلف درسونه دي.

## د نهم ټولګي د لوستونو د پراختیا او تسلسل جدول

| د فصل څپرکي | اصلي او فرعي سرلیکونه | پوهنیزې پایلې | مهارتي پایلې |
|---|---|---|---|
| لومړی څپرکی<br>د احمدشاه ابدالي له واک ته رسیدو څخه دمخه د افغانستان ټولنیز، اقتصادي او سیاسي اوضاع | • اقتصادي حالت<br>• ټولنیز حالت<br>• سیاسي حالت | له زده‌کوونکو څخه هیله کیږي چې د دې څپرکي په لوستلو سره لاندنی پوهنیزې موخې لاس ته راوړي:<br>• زده‌کوونکي له دې څخه دمخه چې ابدالي احمدشاه بابا واک ته ورسیږي د افغانستان د اقتصادي حالت په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>• زده‌کوونکي دې له دې څخه مخکې چې ابدالي احمدشاه بابا واکمنۍ ته ورسیږي د افغانستان له ټولنیز حالت سره پیژند ګلوي ترلاسه کړي.<br>• زده‌کوونکي دې له دې څخه مخکې چې ابدالي احمدشاه بابا واکمنۍ ته ورسیږي، د افغانستان له سیاسي حالت څخه معلومات ترلاسه کړي. | له زده‌کوونکو څخه هیله کیږي چې د دې څپرکي په لوستلو سره لاندې مهارتي موخې ترلاسه کړي:<br>• زده‌کوونکي دې د ابدالي احمدشاه بابا واک ته له رسیدو مخکې، د افغانستان د وضعیت او اقتصادي شرایطو ارزونه وکړي.<br>• زده‌کوونکي دې مخکې له دې څخه چې ابدالي احمدشاه بابا واکمنۍ ته ورسیږي د افغانستان ټولنیز، کلتوري شرایط او ملي غورځنګونه تحلیل کړای شي.<br>• زده‌کوونکي وکولای شي مخکې له دې چې ابدالي احمدشاه بابا واکمنۍ ته ورسیږي، د افغانستان سیاسي اوضاع تحلیل کړای شي. |

| | | | |
|---|---|---|---|
| دوهم څپرکی د ۱۷۴۷ او ۱۷۸۹ میلادي کلونو په اوږدو کې د افغانستان تاریخي پېښې | • احمد شاه بابا څه ډول افغانستان بیا ورغاوه؟<br>• اداري اصلاحات، نظامي فعالیتونه<br>• د احمدشاه بابا د سجایاوو په اړه څه معلومات لرئ؟<br>• آیا پوهیږئ تیمورشاه ۲۰ کاله سلطنت وکړ؟<br>• د شاه زمان د سلطنت پروګرامونه پیژنئ؟<br>• آیا پوهیږئ چې شاه محمود لومړی ځل څرنګه واکمنی ته ورسید؟<br>• د شاه شجاع د لومړي ځل سلطنت څرنګوالی ویلای شئ.<br>• د شاه محمود د دویم ځل سلطنت څرنګوالي باندې خبرې کولای شئ<br>• آیا د امیر دوست محمد خان له لومړي سلطنت سره پیژندګلوي لرئ؟<br>• آیا پر افغانستان باندې د انګریزانو د لومړي یرغل په هکله معلومات لرئ؟ | له زده‌کوونکو څخه هیله کیږي چې د دې څپرکي په لوستلو سره لاندنی پوهنیزې موخې لاس ته راوړي:<br>• د احمدشاه بابا د اداري د حکومت له ډول سره د زده‌کوونکو آشنایي.<br>• د احمدشاه بابا له عمده اصلاحاتو سره د زده‌کوونکو پیژند ګلوي.<br>• زده‌کوونکي دې د احمدشاه بابا د حکومت له پوځي موخو سره آشنا شي.<br>• زده‌کوونکي دې د مفتوحه هیوادونو له وګړو سره د احمدشاه بابا د سلوک په اړوند معلومات ترلاسه کړي.<br>• زده‌کوونکي دې د تیمورشاه له شخصیت سره آشنا شي.<br>• زده‌کوونکي دې د شاه زمان له کړو وړو سره آشنا شي.<br>• زده‌کوونکي دې د شاه محمود له شخصیت سره پیژندګلوي پیدا کړي<br>• زده‌کوونکي دې د شاه شجاع له شخصیت سره آشنایي ترلاسه کړي.<br>• زده‌کوونکي دې په دې اړه معلومات ترلاسه کړي چې شاه شجاع له بارکزایي وروڼو سره څرنګه چلند درلود؟<br>• زده‌کوونکي د شاه محمود د دویم ځل سلطنت څخه آشنایي ترلاسه کړي. | له زده‌کوونکو څخه هیله کیږي چې د دې څپرکي په لوستلو سره لاندې مهارتي موخې ترلاسه کړي:<br>• زده‌کوونکي وکولای شي د احمدشاه بابا د واکمنی سیمې په نقشې کې وښودلای شي.<br>• زده‌کوونکي د هغه د اداري طرز او عمده اصلاحات بیان کړای شي.<br>• زده‌کوونکي د احمدشاه بابا د شخصیت د نظامي ځواکونو د خوځښت په تګلوري پوه شي.<br>• زده‌کوونکي وکولای شي د احمدشاه بابا سجایا بیان کړي.<br>• زده‌کوونکي هغه کارونه چې تیمورشاه ترسره کړي فهرست او یو له بل څخه تو پیر کاندي.<br>• زده‌کوونکي دې هغه پوهه او لیاقت چې شاه زمان نظر خپلو نورو وروڼو ته درلود، تفکیک کړای شي.<br>• زده‌کوونکي دې د انګریز استعماري موخې بیان کړای شي.<br>• زده‌کوونکي دې واکمنی ته د شاه شجاع د رسیدو لاملونه بیان کړای شي.<br>• زده‌کوونکي دې د وزیر فتح خان په واسطه د دویم ځل لپاره د شاه محمود د ټولواک کیدو لاملونه بیان کړای شي.<br>• زده‌کوونکي هغه کارونه چې د امیر دوست محمد خان د پادشاهی په دوره کې سرته رسیدلي دي، لیست کړای شي. |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | • آيا د شاه شجاع د دويم ځل سلطنت په هکله معلومات لرئ؟<br>• آيا د امير دوست محمدخان د دويم ځل سلطنت په هکله معلومات لرئ؟<br><br>• آيا د امير شيرعلي خان د لومړي ځل سلطنت سره پيژندګلوي لرئ؟<br>• آيا د امير محمدافضل خان له شخصيت سره پيژندګلوي لرئ؟<br>• آيا امير محمداعظم خان پيژنئ؟<br>• آيا د امير شيرعلي خان له دويم ځل پادشاهی سره پيژندګلوي لرئ؟<br>• د نوي تمدن پيژندګلوي<br>• آيا پر افغانستان باندې د انګريزانو د دويم ځلي يرغل په هکله معلومات لرئ؟<br>• د امير محمد يعقوب د ټولواکۍ په هکله څه معلومات لرئ. | • د امير دوست محمد خان د اداري له طرز سره دې زده‌کوونکي بلد شي<br>• زده‌کوونکي دې د انګليس له سياست او له امير دوست محمد خان سره د هغو د اړيکو په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br><br>د امير شيرعلي خان له شخصيت او کارنامو سره آشنايي پيدا کړي.<br>• زده‌کوونکي دې د امير محمدافضل خان له پادشاهی سره پيژندګلوي پيدا کړي؟<br>• زده‌کوونکي دې د امير محمداعظم خان له حکومت سره آشنايي پيدا کړي.<br>• زده‌کوونکي دې د امير شيرعلي خان له دويم ځل پادشاهي سره آشنايي پيدا کړي.<br>• زده‌کوونکي دې د انګليس له تيري کوونکو موخو سره پيژندګلوي پيدا کړي.<br>• زده‌کوونکي دې د امير محمد يعقوب خان د حکومت له ځانګړتياوو سره پيژندګلوي ترلاسه کړي. | • زده‌کوونکي دې د انګريز د يرغل شکل، بڼه او د هغو پايلې بيان کړای شي.<br>• زده‌کوونکي وکولای شي د انګريزانو د ظلمونو په وړاندې د افغانانو د جهاد په اړه څرګندونې وکړي.<br>• زده‌کوونکي وکولای شي د هغو همکاريو علتونه بيان کړي کوم چې انګريزانو د امير دوست محمدخان د واکمن کېدو لپاره ترسره کول.<br>• زده‌کوونکي وکولای شي د امير شيرعلي خان کارونه او فعاليتونه فهرست او بيان کړای شي.<br>• زده‌کوونکي دې هغه کارونه چې امير محمد افضل خان سرته رسولي څرګند کړي.<br>• زده‌کوونکي د امير محمد اعظم خان د حکومت د جنګونو پايلې بيان کړای شي.<br>• زده‌کوونکي وکولای شي د نوي تمدن د پيژندګلوی په اړوند امير شيرعلي خان د ونډې په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br>• زده‌کوونکي وکولای شي د امير شيرعلي خان پروګرامونه د نوي تمدن په اړه تفکيک کړای شي.<br>• زده‌کوونکي دې د انګريز د دويم يرغل علتونه بيان کړای شي.<br>• زده‌کوونکي وکولای شي د انګريزانو په وړاندې د افغاني ښځو او نارينه وو دريځ څرګند کړي.<br>• زده‌کوونکي بايد د ميوند د جګړې پايلې او وياړونه بيان کړای شي. |

| | | | |
|---|---|---|---|
| دریم څپرکی<br>د افغانستان پېښې له ۱۸۸۰ م کال څخه تر ۱۹۷۳ م کال پورې | • د مرکزي قدرت د ټینګیدو په اړه د امیر عبدالرحمن خان ونډه څه وه؟<br>• د امیر حبیب الله خان د سلطنت په هکله معلومات لرئ؟<br>• د افغانستان خلکو څرنګه خپله خپلواکي له انګریزانو څخه ترلاسه کړه؟<br>• د اعلیحضرت امیر امان الله خان د مسافرت لاسته راوړنې څه وې؟<br>• کلکاني حبیب الله څرنګه واکمنۍ ته ورسید؟<br>• آیا پوهیږئ محمد نادرشاه څرنګه واک ترلاسه کړی دی؟<br>• آیا پوهیږئ چې محمدظاهر شاه ۴۰ کاله سلطنت وکړ؟ | له زده‌کوونکو څخه هیله کیږي چې د دې څپرکي په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د مرکزي حکومت او نظام ټینګښت.<br>• له مرکز څخه فرار او تیښته، او په اسلام باندې د نورستان د خلکو مشرفول<br>• د زده‌کوونکو بلدتیا د دې دورې له سیاسي، کلتوري او نورو اصلاحاتو سره<br>• د یوې سترې الهي عطیې په توګه د خپلواکۍ د بیرته ترلاسه کولو په اړوند د زده‌کوونکو آشنا کېدل<br>• د اصلاحاتو له پراوونو سره<br>• د محمدنادر شاه د سلطنت او د هغه د حاکمیت له څرنګوالي سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل<br>• د محمدظاهر شاه د پادشاهۍ له بېلابېلو پړاوونو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل | له زده‌کوونکو څخه هیله کیږي چې د دې څپرکي په لوستلو سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>• زده‌کوونکي وکولای شي د امیر عبدالرحمن دواکمنۍ سیمې په نښه کړي.<br>• زده‌کوونکي وکولای شي چې امیر حبیب الله خان د وخت د فکري او کلتوري نهضتونو موخې بیان کړي<br>• د فکري کلتوري نهضتونو له رامنځ ته کیدو سره د زده‌کوونکو اشنا کیدل<br>• خپلواکۍ ته د رسیدو په اړه د خلکو د مبارزو له جبهاتو سره د زده‌کوونکو آشنایي<br>• د شاه امان الله خان د کورنیو او بهرنیو مسافرتونه د لاسته راوړونو په اړه د زده‌کوونکو د مسلکي پوهې لوړیدل.<br>• زده‌کوونکو وکولای شي د حبیب الله کلکاني په وخت کې د ځینو کړیو د ګټې اخیستنې له څرنګوالی تحلیل کاندی<br>• زده‌کوونکي د محمد ظاهر شاه د سلطنت لاسته راوړنې په بیلابیلو مرحلو کې تحلیل کړای شي.<br>• زده‌کوونکي د چین هیواد په نقشې کې وښوولی شي |
| څلورم څپرکی<br>د ګاونډیو هیوادونو معاصر تاریخ | • د چین یا د نړۍ د ډېر وګړو لرونکي هیواد په اړه څه معلومات لرئ؟<br>• آیا د پاکستان له هیواد سره پیژندګلوي لرئ؟ | • له زده‌کوونکو څخه هیله کیږي چې د دې څپرکي په زده‌کړې سره لاندې پوهنیزې موخې ترلاسه کړي:<br>• زده‌کوونکي دې په چین کې له مروجو ادیانو، ژبو او رسم الخط سره آشنا شي.<br>• زده‌کوونکي دې د ۱۹۴۹میلادي کال د چین د | • زده‌کوونکي باید په چین کې بېلابېل مذاهب یو له بل څخه بیل کړای شي.<br>د ۱۹۴۹م کال د کلتوري انقلاب ماهیت درک کړای شي.<br>• د پاکستان د رامنځ ته کیدو او جوړیدو لاملونه وپیژني.<br>• د پاکستان بیلابیل حکومتونه یو له بل څخه بیل کړای |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | آیا د ایران د اسلامي جمهوریت له تاریخ او موقعیت سره پیژندګلوي لرئ؟<br>• آیا د ازبکستان د هیواد په اړه معلومات لرئ؟<br>• آیا د تاجکستان له خلکو او تاریخ سره بلدتیا لرئ؟<br>• آیا د ترکمنستان له تاریخ او ځمکې سره پیژندګلوي لرئ؟ | انقلاب په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br>• زده‌کوونکي د ختیځ او لویدیځ پاکستان د بیلیدو لاملونه وپیژني.<br>• زده‌کوونکي باید د پهلوي دورې له اصلاحاتو او د اسلامي انقلاب په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>• د ازبکستان د پلازمینې، ژبې، رسم الخط او خپلواکۍ سره د زده‌کوونکو پیژندګلوي تر لاسه کړي.<br>• زده‌کوونکي دې د تاجکستان له تاریخ، مذهب، او قامونو سره آشنایي ترلاسه کړي.<br>• د ترکمنستان له (لنډ تاریخ، ژبې، مذهب او سیاسي اداري جوړښت) سره زده‌کونکي آشناشي. | شي.<br>• د پاکستان په جوړښت کې د احزابو او نهضتونو په رول پوه شي.<br>• د پهلوي دورې د پیښو بیلول او پرتله کول د اسلامي انقلاب له دورې سره.<br>• د نقشې پر مخ د ازبکستان هیواد وښودلای شي.<br>• د پخواني شوروي اتحاد د دړې وړې کېدو او د ازبکستان هیواد د خپلواکۍ د ترلاسه کولو لاملونه ځانګړي کړای شي.<br>• د تاجکستان موقعیت د نقشې پر مخ وښولای شي.<br>• د تاجکستان د خپلواکۍ لاملونه فهرست کړای شي.<br>• په ملګرو ملتو کې د ترکمنستان په موقعیت پوه شي.<br>• د ایکو له نورو غړو سره د ترکمنستان رول پرتله کړای شي. |

## د اجتماعیاتو په زده‌کړو کې د تدریس ستراتیژي:

د اجتماعي درسونو د تعلیمې نصاب د تدریس ستراتیژي لکه د نورو څانگو په څیر ډول ډول ده، خو د اجتماعي درسونو مضمون ځانگړې ستراتیژي لري چې د هغو د موضوعاتو له طبیعت سره مناسبه ده.
دلته لازمه ده چې هغوستراتژیو ته مخه کړو کوم چې د تاریخ د مضمون له طبیعت، د افغانستان له شرایطو او د زده‌کوونکو له علمي اوسنۍ کچې سره سمون لري. دغه ستراتیژۍ پر دې اصل ولاړې دي چې زده‌کړه د زده‌کوونکي پر محور راڅرخي، او ښوونکی یوازې د زده‌کړې کار اسانه کوي، صحیح او سمه زده‌کړه ډول ډول ستراتژیو ته اړتیا لري چې باید د مضمون له طبیعت سره تناسب ولري مهمې ستراتیژۍ عبارت دي له:

### ۱- پلټنه او د مسئلې حل:

د مسئلو د حل ستراتژي هغه ستراتژي ده چې اساسي پوښتنې مطرح کوي او زده‌کوونکي یې باید ځواب ووایي او د هغو حل بیامومي، زده‌کوونکي دا کار باید د معلوماتو او حقایقو د تفحص له لارې په لاندې پړاوونو کې ترسره کړي، د نمونې انتخاب، د مسلې ټاکل، فرضیه جوړونه، د ذهني حل لارې، د مسلې د حل لارې، د بیان راټولول، د بیانونو راټولول او تحلیل، له ویناوو څخه نتیجه اخیستنه، د اند څرگندونه، د ښوونکي زیاته ځیرتیا، کولای شي له دې ستراتیژۍ څخه د واقعي ژوند د مسائلو د ادارې په ترڅ کې( اقتصادي، اجتماعي او سیاسي )گټه واخلي او زده‌کوونکي په څو ډلو وویشل شي چې د ممکنو جلا لارو په اړه بحث وکړي، ښوونکي باید له زده‌کوونکو سره مرسته وکړي او اړینې سرچینې د هغوی په واک کې ورکړي، د ښوونې او روزنې عملیات تنظیم او هغوی وهڅوي چې له خپلو مهارتونو څخه په بحث او پلټنې کې استفاده وکړي

### ۲- د متن شاربنه (تحلیل)

له دغې ستراتیژۍ څخه د تاریخ مضمون او مدني معلوماتو په تدریس کې گټه اخیستله کیږي. دغه ستراتژي له متونو منابعو او مراجعو څخه غوره کیږي او دغه ستراتیژي لاندې پړاوونه لري.
– له هغه وروسته چې اصلي متن زده‌کوونکو ته توزیع شو، ښوونکی هغه لولي.
– زده‌کوونکو ته یو لنډ وخت ورکوي چې متن ولولي او پرهغو پوښتنو چې مطرح کېږي، فکر وکړي.
– ښوونکی او زده‌کوونکي په ډله ییزې مباحثې کې پر ځوابونو بحث وکړي.
– ښوونکی د اصلي متن او نورو توکو په منځ کې اړیکې ځای پرځای کوي چې د بیلابیلو مضمونونو تر منځ اړیکه رامنځ ته شي.

### ۳- د مستقیم تدریس ستراتژي

هغه مهال له دې چلند څخه گټه اخیستله کیږي چې ښوونکی وغواړي د بیان له چلند څخه په کار اخیستنې سره مطالب څرگند کړي. په دې چلند کې اساسي نقش ښوونکی لوبوي. دغه تگ لاره د تاریخي موضوعاتو د تدریس لپاره لکه(لومړۍ نړیواله جگړه) مناسبه ده ښوونکی کولای شي له دې کړنلارې څخه په کار اخیستنې سره، د مفاهیمو تدریس او تعمیم ته د رسیدنې لپاره استفاده وکړي، په هغه صورت کې چې له قیاسي طریقې څخه کار واخلي او لاندنی پړاوونه مراعات کړي
– د مفهوم لپاره یو تعریف افاده کړي.
– له زده‌کوونکو سره د اقتصاد د ځانگړتیاوو په اړه مباحثه وکړي
– د کرنې او سوداگرۍ د اقتصاد د مفهوم په اړوند مثالونه ووایي.
– له مفهوم څخه د مثالونو په وړاندې کولو سره له هغوی څخه وغواړي چې هغه سره گډې کړي.

### ۴ - د ډله ییز کار ستراتژي:

په دې چلند کې زده‌کوونکي په څلور او شپږ کسیزو ډلو ویشل کیږي، دغه د زده‌کړې فعال چلند صحیح غوړ نیولـــو او د خبرواترو د مهارتو له لارې زده‌کوونکي هڅوي، په دې چلند کې د هرې ډلې زده‌کوونکي یوه ګډ هدف ته د رسیدو لپاره له یو بل سره کار کوي. ښوونکی کولای شي له زده‌کوونکو سره د مرستې لپاره له ځینو وسایلو څخه ګټه واخلي.

له ډله ییز کار چلند څخه کولای شو د ساده څیړنو په سرته رسولو، د نقشې په ترسیم، د یوې ننداري د ښـــودلو او د یـــوه مدل د جوړولو په اړه استفاده وکړو.

### ۵ - د نقش لوبول

دغه چلند د زده‌کولو له فعالو چلندونو څخه شمیر کیږي، په دې چلند کې له زده‌کوونکو څخه هیله کیـــږي چـــې ټـــاکلي نقشونه چې په واقعي ژوند کې شتون لري، ولوبوي. ښوونکی باید هر یوه زده‌کوونکي ته ووایي چې یو رول ولوبوي د ساري په ډول له زده‌کوونکو څخه غوښتل کیږي چې د کرنې وده تمثیل کړي، ښوونکی د زده‌کوونکو په مرستې ســـره موضـــوع ځانګړې او د ټاکلي رول د لوبولو لپاره کسان غوره کوي. د ساري په ډول: د بزګر د رول لپاره لـــومړی زده‌کـــوونکی د کرنې وزارت لپاره، دویم زده‌کوونکی او دریم زده‌کوونکی د ځمکې د څښتن لپاره غوره کوي. وروسته له هغې ښـــوونکی، زده‌کوونکي ازمویي، ټولګی د ازموینې لپاره تیاروي او زده‌کوونکي خپل رول لوبوي.

### ۲- د تمرین روش یا چلند

تمرین یو له هغو فنونو څخه دی چې له ډېر پخوا څخه په کار وړل شویدی. نن سبا چې روزنیزې موخې د پوهنیزو، ذهنیتـــې او مهارتي چاپېریال په دننه کې را نغاړل او تنظیمیږي. نو ورسره ورسره زده‌کوونکو ته د مناسبو تمرینونو په ورکړې کې هم د ښوونکي مسؤولیت زیاتیږي.

تمرین بیلابیل ډولونه لري:لکه تکراري تمرین او استنباطي تمرین چې د مفاهیمو د استعمال، تفکر او استدلال سره مـــل دي.

عملي تمرینونه: له عملي او کړنیزو تمرینونو څخه کولای شو د تاریخي، جغرافیایي نقشو، د جغرافیایي اوږدوالي، پلن والـــي (طول، عرض) او شجره نامو یا په بلې وینا د نسبونو په اړه کار واخلو.

## ۷- توضیحي چلند:

توضیحي چلند له چاپي مطالبو څخه په ګټې سره زده‌کوونکو ته د اطلاعاتو له مستقیم لیږد څخه عبــارت دی. د تــدریس د تشریح او نور و رسنیو نه په ګټې اخستنې سره. په دې چلند کې ښوونکی درسي موضوعات او مفــاهیم زده‌کوونکــو تــه وړاندې کوي، د توضیحي چلند له ښګینو څخه یوه داده چې کولای شو زده‌کوونکو ته د حقایقو مکمله ټولګــه، اصــول او مفاهیم په منسجم ډول ور زده‌کړو. ددغه چلند له محدودیتونو څخه دادي چې زده‌کوونکي حاضر او تیار مطالب تــر لاســه کوي او د حقایقو په کشفولو کولو کې فعال ښوونکی دی. دغه چلند په هغه صورت کې چې له نورو چلندونو سره په کــار یووړل شي، اغیزمن به وي له توضیحي چلند څخه د ډیرو علمي مفاهیمو په زده‌کړې کې کولای شو، ګټه واخلو.

## ۸- د ډله ییزو خبرواترو چلند –ډله ییزه(مباحثه)

د مباحثې یا خبرواترو چلند یو ډیر لرغونی چلند دی چې د ښوونې او روزنې د تاریخ په اوږدو کې عملي شویدی، په ډله ییــز چلند کې ښوونکی لومړی زده‌کوونکي په څو ډلو ویشي، هرې ډلې ته موضوع مشخصوي او له زده‌کوونکو څخــه غــواړي چې د هغه په اړه بحث وکړي. په پای کې یو تن له دې ډلې څخه پایله نورو زده‌کوونکو ته وایي.
څو خپل اندونه، عقاید، تجربې له نورو سره شریک کړي، که چیرې ښوونکی په ډله ییز بحث کې څارنه او نظارت ونکــړي ممکنه ده چې د ډلې وخت په بې ګټو خبرواترو تیر شي له دې چلند څخه کولای شو د ټولنیزو مسایلو په زده‌کولو د تاریخي اتلانو د کړو وړو او یا په انساني بشري جغرافیې پورې اړوند مسایلو کې کار واخلو.

## ۹- پروژه یي چلند (د کار واحد)

د (پروژه یې یا د کار واحد) چلند د عملي چارو د سرته رسولو، مطالعې، د حل د لارې د موندلو، د اطلاعاتو د ټولولو اړتیــا را منځ ته کوي. دغه چلند معمولاً له ښوونځي نه بهر صورت مومي. په دې چلند کې ښوونکی د زده‌کوونکو د مینــې ســره سم یوه موضوع غوره کوي او بیا له هغو څخه غواړي چې په هلکه یې اطلاعات را غونډ کړي او یا یې په اړه  د یوې کړنــې په سرته رسولو لاس پورې کړي. د ساري په توکه: د عکاسۍ د کمرې په مرسته د ډبرو را ټولونه، د عکــسونو تیــارول، د یوې تاریخي جوړښت یا یوې ودانۍ څیړنه، له یوه کوچني جغرافیایي ځای څخه د یوې نقشې تیــارول او د یــوې ټــولنیزې موضوع په اړه څیړنه.

## ۱۰- علمي کتنه

پوهنیزې هلې ځلې له ښوونځي نه بهر یوه تجربوي کړنه ده چې له ټولګي نه بهر تر سره کیږي. د ساري په ډول: پــه ښــار کې ګرځیدنه، له یوې فابریکې څخه کتنه، له بازار، کتابتون، تاریخي شیانو، له یوې ادارې، یوې کرنیزې کروندې، یوه کان، یو موزیم او یا یوې جغرافیایي منظرې څخه کتنه او داسې نور. لازمه نده چې علمي کتنه هرومرو د یوه یا څو لــرې ځــایونو لیدنه کتنه وي، بلکې د زده‌کوونکو د شاوخوا چاپیریال لیدنه کتنه ده چې زده‌کوونکي ورڅخه زده‌کړې علمي سیر یا علمــي (هلې ځلې) موشمیرل کیږي

## ۱۱—د پوښتنې او ځواب چلند:

د پوښتنې او ځواب چلند هغه فن دی چې کولای شو له هغه څخه د ټولو لوستونو په وړاندې کولو او تــدریس کــې کــار واخلو. په تیره په هغه وخت کې چې ښوونکی غواړي د زده‌کوونکو پاملرنه د یوه مفهوم په اړه د تفکر لپــاره راواړوي، لــه

دې چلند څخه کار اخلي ممکنه ده چې له دې فن څخه د هغو مطالبو د مرور لپاره چې دمخه ویل شویدي، د زده‌کوونکو د زده‌کړې د ارزونې لپاره کار واخیستل شي.

د هغو پوښتنو ډولونه چې ښوونکی کولای شي هغه رامنځ ته کړي، کولای شو په لاندې ډول لنډې خلاصه کړو:

۱ – پوښتنه د لنډولو یا خلاصه کولولپاره

– مثال: د کوشانیانو لوست ولولئ او لنډ یې کړئ.

۲ – تجزیه او تحلیل شاربل)

– مثال: څه لاملونه وو چې سکندر مقدوني ډیرې سیمې ونیسي؟

## د زده‌کوونکو د معلوماتو د ارزونې ستراتیژي:

ارزونه د زده‌کړې موخو ته د رسیدو د کچې د تشخیص وسیله ده. ارزونه د بریالیتوب او د زده‌کړې له کړنو څخه یو روښانه انځور ښوونکي ته ورکوي، ټولنیز لوستونه، په نور مضامینو کې له مشابه روشونو څخه په ارزونه کې کار اخلي، خو د موضوع د توپیر په خاطر له ځینو څخه یې ګټه اخیستله کیږي.

له هغه ځایه چې ارزول له روزنیزو ارزښناکو او مهمو پروګرامونو څخه دي. د یو لوست زده‌کول دا ګټه لري چې له جمود(حالت تلقین او د معلوماتو له یادونې) څخه ووځي او په ژوندۍ توګه په (بحث،تحلیل،تفسیر او د مسایلو په حل) تبدیل کیږي.

د ارزونې د ستراتیژۍ ځینې مهمې او ارزښناکې برخې په لاندې ډول دي.

## ۱- دکتبي کاغذ او قلم چلند

دغه چلند چې له قلم او کاغذ څخه کار اخلي، یوه له ډیرو مهمو ستراتیژیو څخه ده چې د زده‌کوونکو ځواک او استعداد په ځانګړو کارونو کې اندازه کوي، په دې چلند کې زده‌کوونکي هغو پوښتنو ته چې هغوی ته ورکول شوي، په لیکلي ډول ځواب ورکوي. په څلورومیاشتنیو یا کلنیو ازموینو کې معمولاً له دې چلند څخه کار اخیستل کیږي.

چې د زده‌کوونکو د زده‌کړې کچه یوه ځانګړې ښوونیزه دوره کې وارزول شي.

باید یادونه وشي چې دا ازموینه یواځې د پیژندګلوۍ په برخه کې پاتې کیږي.

### ۲—د ملاحظه چلند (مشاهده)

په دې چلند کې ښوونکی یا کتونکی خپل ټول حواس زده‌کوونکي ته اړوي چې هغه په ټاکلي ځای کې وڅاري.

ددې څارنې موخه داده چې هغه معلومات چې د زده‌کوونکي په اړه یې ترلاسه کړي تر څو له هغو نه د مهارتونو، سلوک او اخلاقو په اړوند چې په زده‌کوونکي پورې اړه لري، کار واخیستل شي. د ملاحظې او کتنې پر مهال له بیلابیلو وسایلو څخه کار اخیستل کیږي، د ساري په ډول: د اندازې اخیستنه چې کله ناکله عددې یا شمیرییزه وي او کله بیا غیر عددي یا غیر شمیره ییزه. ورروسته تر هغه چې ښوونکي دغه اطلاعات سره راټول کړل، باید هغه په کمې صورت وارزوي چې د زده‌کوونکو د قوت او ضعف ټکي بیامومي، د کتنې یا(مشاهدې)په چلند کې له راز راز چک لیست څخه کار اخیستل کیږي.

چک لیستونه بیل بیل ډولونه لري د ساري په ډول:

– د مسایلو په حل کې د زده‌کوونکو د مهارت د سنجولو چک لیست

– د زده‌کوونکو د کړنو د سنجولو چک لیست

– د ارتباطي مهارتونو د سنجولو چک لیست

– ښوونکی کولای شي د لوست د تنوع او ډول ډول والي لپاره په خپله د زده‌کوونکو د کړنو او چلند د کتنې په چک لیست لاس پورې کړي.
پام وکړئ هغه نمونوي چک لیست ته چې د مسایلو په حل کې د زده‌کوونکو د مهارت د کچې پیداکولو لپاره په کار وړل کیږي

| شمیره | معیار | ضعیف(۱) | منځنی(۲) | ښه(۳) | لوړ(۴) |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | چلند | | | | |
| ۲ | د مسلې ځانګړې کول او ارزونه یې | | | | |
| ۳ | وړاندې کول(ارائه) | | | | |
| ۴ | د توکو ګیلوی کول او ارزونه یې | | | | |
| ۵ | تصمیم نیول | | | | |

**په کړنې باندې ولاړ چک لیست**

په دې چلند کې زده‌کوونکي هغه څه چې په واقعي ژوند کې یې زده‌کړي، روښانه کړي او یا هغه څه وکړي څو خپل مهارتونه وښیي. په دې چلند کې هغه معیارونه، لکه: د زده‌کوونکي څرګندونې د لومړي رول سرته رسول، په ډله کې ګډکار، د فردي کار سرته رسول او نورې کړنې د پام وړګرځي.

**د تاریخ په لوست کې د زده‌کوونکو د کړنو د کچې معلومولو د چک لیست بیلګه**

| شمیره | معیارونه | منځنی | ښه | لوړ(عالي) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | له دوستانو سره په فصیحه او صحیحه ژبه اړیکې نیسي | | | |
| ۲ | د تاریخ له ژبې څخه کار اخلي | | | |
| ۳ | د ټولو زده‌کوونکو لورته ګوري | | | |
| ۴ | له یوه ځواکمن او پیاوړي شخصیت څخه برخمن دي | | | |
| ۵ | د زده‌کوونکو پوښتنو ته په جرات او ډاډ ځواب وایي | | | |
| ٦ | مفاهیم او اصطلاحات تعریفوي | | | |
| ۷ | د محتوا مهم او ستونزمن عناصر ټاکي | | | |
| ۸ | له تاریخي نقشې نه کار اخلي | | | |
| ۹ | د یوه صحیح چلند په منظور په زده‌کړه کې له اړینو توکو څخه کار اخلي | | | |
| ۱۰ | خپل مطلب په یوه ټاکلي وخت کې ترسره کوي | | | |

۳– د اړیکو لرוونکو مهارتونو د ارزونې چک لیست:
دغه چلند له نورو سره د اړیکو د مهارتونو د تر لاسه کولو او اندازه کولو په منظور کار وړل کیږي. د ټولنیزو لوستونو نصاب د ارتباطي مهارتونو په ودې باندې ولاړ دی. په دې ستراتیژۍ کې معلومات د زده‌کوونکي د ارتباطي کړنو له مینځه د تفکر څرنګوالی او د هغه چلند د مسایلو په حل کې راټولیږي.
لاندې مثال ته پاملرنه وکړئ.

**د ارتباطي مهارتونو د اندازې اخیستنې د چک لیست بیلګه**

| شمیره | د اړیکې مهارتونه | هو | نه | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ابتکاري افکار نوروته وړاندې کوي | | | |
| ۲ | کله چې مطلب ورته څرګند نه شي د نورو وړاندیز مني او لـــه خپله انده تیریږي | | | |
| ۳ | د نورو فکرونو(سوچونو)ته درناوی کوي | | | |
| ۴ | په هغه کار کې چې ورته سپارل شویدی، د مسوولیت احساس کوي | | | |
| ۵ | له نورو سره ګډ کار کوي | | | |

پاملرنه: د زده‌کوونکو یوه برخه صنفي نمرې په ټولګي کې د زده‌کوونکو د کړنو پر بنسټ د ښوونکي د کتنـــې لـــه مخـــې ځانګړې کیږي او پاته نورې یې د ادارې په تصمیم او د پوهنې وزارت په ارز ونې پورې تړاو لري.

# د تاريخ د درسی پروګرام اجرایي لوازم

**۱- د اړتیا وړ پوهنیز مرستندوی شیان**

توره تخته تباشیر،مارکر، د ښوونکي لارښود کتاب ورځپاڼې، مجلې. پوهنیزچارت

فلش کارت، ډول ډول جغرافیایي نقشې، اړوند کتابونه، د امکان په صورت کې کامپیوتر او انټرنت. راز راز سلایدونه، دجغرافیایي فلمونه، انځورونه، تاریخې اطلسونه، د ځمکې کره د تاریخي لړیو ګرافونه او شجر پاڼه، مستند تاريخي او داستاني فلمونه،د موضوع په اړوند د تاریخي شخصیتونو عکسونه، انځورونه،نقشې، تاریخې معتبرکتابونه او سر چینې، د مسکوکاتو البومونه، مسکوکات، جغرافیایي کاغذي پیسې او نور.

**۲- د تاریخ له ښوونکي نه هیلې**

**الف ــ عمومي صلاحیتونه**

د تاریخ د لسانس درجې لرل او یا لږ تر لږه له بکلوریا نه پورته په خپلې څانګې کې له وروستیو اطلاعاتو سره آشنایي لرل، د زده‌کوونکو د عمر په اړوند او ذهني ځانګړتیاوو سره پیژندګلوی، د تدریس له چلندونو سره پیژندګلوي، د زده‌کوونکو له پوهې څخه د ارزونې د څرنګوالي او د تدریس له چلند سره پیژندګلوي

د ښوونکی له دندې سره مینه ولري او د اخلاقي صلاحیت لرل

**ب: ځانګړي صلاحیتونه**

د تاریخ له درسي مفرداتو سره پیژندګلوي او د بیلابیلو درسونو د تدریس له چلندونو سره بلدتیا

– د بیلابیلو لوستونو دیادولو لپاره د پلان د جوړولو ځواکمني

د ټولګیو د ادارې ځواکمنې

له درسي او ممد درسي وسایلو څخه د کار اخیستنې ځواکمني

**۳–له ښوونځي نه هیلې:**

د پروګرامونو د سرته رسولو لپاره د شرایطو رامنځ ته کول، د درسي کتابونو تیارول، د ښوونکي لارښود، د زده‌کړې توکي او د زده‌کوونکو له مشرانو سره د منظمې اړیکې رامنځ ته کول

د زماني پروګرامونو د اجرا کولو په اړوند د پوهنې وزارت مصوباتو ته پاملرنه

په ټولګې کې د ښوونکو پرکړنو څار او د ښوونکو لارښوونه

په ښوونځیو کې د کتابتونونو را منځ ته کول

د کورنیو په ګډې کړنې سره د ښوونکو د اړتیا وړ کتابونو تیارول

**۴– له کورنیو څخه غوښتنه:**

– د کوچنیو زده‌کوونکو د ښوونیز څرنګوالي په اړه له ښوونکو سره اړیکه نیول

– د زده‌کوونکو د زده‌کړې له پرمختګ څخه خبر لرل

– د ښوونځیو له ادارې سره مرسته

# دويم څپرکی

## د تاريخ لوستنه د تدريس لارښود

ددې لارښود په لومړي څپرکي کې تاسې ښاغلي ښوونکي د درسي پروګرام له سريزو او کليــاتو، د لوســت ورکولــو لــه چلندونو او ددې پروګرام د ارزونې له څرنګوالي سره آشنا شوئ په دې څپرکي به د تدريس له کلني پلان او د هر لوســت د تدريس له بهير سره آشنا شئ.

### د تدريس کلنی پلان:

دغه پلان دا ښوونه کوي چې تاسو څرنګه د يوه کال په ترڅ کې د يوه درسي کتاب محتوا(دننه توکي) په ورځو،اونيــو، او مياشتو وويشی.ـزموږ په هېواد کې د ښوونيز کال پيل په تودو او سړو ولايتونو کې توپير لري په ګرمــسيرو ولايتونــو کــې ښوونيز کال د مني له لومړی سر څخه پيليږي او د مرغومي(جدي)مياشتی دوه اونی. ازموينې ته بيلې شوي او پــه ورروســتنی اونی کې زده‌کوونکي په رخصتی ځي، د پسرلي د مياشتو په پای کې يعنې د غبرګولي( جوزا) مياشــتې دوه لــومړنی اونــی ازموينې ته بيلې شوي او زده‌کوونکي په دوو وروستيو اونيو کې د کال د پای په رخصتی ځي.

د سړو سيمو په ولايتونو کې ښوونيز کال د کب (حوت) له پنځه لسمې څخه پيليــږي. د ښــوونيز کــال تــر نيمــايي د چنګاښ(سرطان) مياشتې پورې دوام کوي. په دوو وروستيو اونيو کې ازموينې پيليږي. زده‌کوونکي د زمري(اسد) د مياشــتې په دوو اونيو کې له ازموينې څخه وروسته په رخصتی ځي. په دې سيمو کې په ښوونيز کال کې د پــای ازمــوينې د ليننـدی (قوس) مياشتې په دوو اونيو کې پيل او تر ازموينې وروسته زده‌کوونکي د کال تر پايه په رخصتي ځي، د پوهنيز کال موده په ټول کال کې ۲۸ اونی ده. د کلني پلان د تنظيم او جوړولو لپاره د درسي کتاب د پاڼو شمير په ۲۸ اونيو ويشل کيږي. تــر لاسه شوي شميره دا ښودلای شي چې ښاغلي ښوونکي په اونی کې بايد د کتاب څو پاڼې تدريس کړي: د هر لوســت پــه ورځيني پلان کې د هر لوست پر ښوونيزو موخو، د لوست ورکولو پر څرنګــوالي، د تــدريس پــر لوازمــو(توکــو)، د زده‌کوونکو د معلوماتو د ارزونه، څرنګوالی او د تدريس کړنې ( د مقدماتي کړنو ترسره کول، لکه سترې مه شي او روغبــړ او هر کلی– سوبتيا( حاضري) اخيستنه، د تير لوست پوښتنه– د پاملرنې او هڅونې د حالت رامنځ ته کول) شامل دي.

د لوست وړاندې کول او د زده‌کوونکو د زده‌کړې د کچې ارزونه، د لوست د متن پوښتنو ته ځواب او يا دلوســت پــای، سربيره پر دې اضافي معلومات هم د تاسو ګرانو ښوونکو لپاره دي.

**د لومړي لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | د سرلیکونو شاربنه | |
| **د لوست موضوع** | د احمدشاه بابا واک ته تر رسیدو وړاندې د افغانستان سیاسي، اقتصادي او تولنیزه او ضاع | |
| **۲- روزنیـــزې ، پــــوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده د لوست په پای کې زده‌کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي.<br>۱- د خپلواکی غوښتونکو له موخو سره د زده‌کوونکو پیژندګلوی.<br>۲- د پیر روښان د خوځښت له ماهیت سره د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۳- د خوشحال خان خټک له سیاسي غورځنګ سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل<br>٤- د هوتکیانو په اړه د زده‌کوونکو د پوهې د کچې لوړول. | |
| **۳- د زده‌کړې روش** | ۱- توضیحي ۲- مباحثه وي | |
| **۴- د زده‌کړې مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، توره تخته<br>تباشیر، چارت، نقشه، انځور او داسی نور | |
| **۵- د ارزونـــې څرنګـــوالی ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د یوې لطیفې په ویلو یا د یوې پوښتنې په کولو سره ښوونکی د زده‌کوونکو پام را اړوي، څو درس ته پوره پوره ځیر شي. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| وخت په دقيقې | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | ٦-١ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهيمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقيقې | - زده‌کوونکي د ښوونکي ليکنې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- زده‌کوونکي دې په خپل منځ کې مباحثه وکړي.<br>- دزده‌کوونکو استازې دې د بحث لنډيز خپلو ټولګيوالوته ووايي. | - ښوونکی د لوست په پيل کې د اړوند درس سرليک پر تورې تختې باندې ليکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د زده‌کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>- ښوونکی د زده‌کوونکي د پوښتنو په کولو سره ارزوي.<br>- ښوونکی يو ځل بيا لوست توضيح او خلاصه کوي. |

٧- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:

١- د ملوك الطوايفي جوړښت او شتون او د ګاونډيو هېوادونو يرغل د نظام د کمزوري کيدو او سيمه ييزو حکومتونو موجبات رامنځ ته کړل.

٢- تيری کوونکو هيوادونو اکثراً دا هيله درلوده چې خپل فرهنګ زمونږ په خلکو ومني.

٣- د افغانانود خپلواکي غوښتونکو د ذهنيت په روزنې کې سياسي لاملونه اغيزمن وو.

## ٨- د ښوونکي لپاره (زياتي معلومات)

د لازياتو معلوماتو لپاره ښوونکی کولای شي لاندې ټکو ته پاملرنه وکړي:

په ١٥٠١ م کال کې د سلطان حسين بايقرا تر مړينې وروسته افغانستان د ماوراءالنهر د شيبانيانو، د ايران د صفوي دولت، او د هند د مغليانو "بابري دولت" تر يرغل لاندې راغی. افغانستان د دريو نويو جوړو شويو دولتونو چې په شمال- لويديځ او ختيځ کې يې موقعيتونه درلودل ونيول شو او دا هغه مهال و چې مرکزي دولت وپاشل شو. د يرغل ګرو د بې رحمانه يرغلونو له امله ډيرې کرنيزې ځمکې شړې او ډير ودان ښارونه ويجاړ شول. ملي کلتور او اقتصاد له زيانونو سره مخامخ شول. او په دې توګه خلك د تيري کوونکو د ظلمونو له لاسه تر پزې ورسيدل. ورځ تر ورځې د پرديو په وړاندې د خلکو تنفر او کرکه زياتېده. ترڅو خلکو په پټه توګه د خپلواکی غوښتلو پر مبارزو پيل وکړ. د لومړي ځل لپاره د ايران صفويان د کندهار، هرات، اندخوی او بلوچستان ولايتونو له پاځونونو سره مخامخ شول. صفويانو هم د دغو پاځونونو په وړاندې له هيڅ ډول تشدد، ډله ييزو وژنو او د خلکو د له لوټولو ځخه ډډه ونه کړه. خو له دې سره سره هم د ملي مبارزينو پاځون غلی نه شو. که په يوې سيمې کې به غلی شو، په هغې بلې سيمې کې به بيا را ځرګند شو. په دې توګه د يرغلګرو د شړلو لپاره ځو خپلواکی غوښتونکي غورځنګونه رامنځ ته شول چې دلته د دغو غورځنګونو د نومونو په اخيستلو بسنه کوو.

د روښانيانو غورځنګ: د دغه غورځنګ مشر په پير روښان باندې مشهور و، بايزيد انصاري د شيخ عبدالله انصاري زوی و. پير روښان او د ده پيروانو د مغلي هند دولت د ظلمونو او استبدادونو په وړاندې ښه په ميرانه ډغرې ووهلې.

د خوشحال خان خټک غورځنګ: خوشحال خان د خټکو په نامتو او میړنۍ قبیلې پورې تړاو درلود. هغه د توري، سیاست خاوند او یو ستر پیاوړی او نامتو شاعر و چې د ۱٦م پیړۍ په نیمایي کې یې د مغلي هند ټولواکانو په وړاندې په خپلواکي غوښتونکو مبارزو پیل وکړ. خوشحال خان خټک د ۷۰ کلونو عمر کولو وروسته په حق ورسید، چې د خپل له وصیت د مخې د خټکو په غرنی سیمه کې خاورو ته وسپارل شو.

د میرویس نیکه تر لارښوونې لاندې د افغانانو غورځنګ:

د میرویس نیکه تر لارښوونې لاندې د خلکو ستر پاڅون په کندهار کې د صفوی ګرګین د دولت تسلط او مظالمو ته د پای ټکی کیښود او تر دې وروسته په کندهار کې د افغانانو خپلواک دولت رامنځ ته شو. دغه دولت څه باندې دیرش کاله دوام وکړ.

*قدرمنو استادانو د زیات معلوماتو لپاره لاندنیو منابعو ته مراجعه وکړئ:*

*۱- افغانستان در مسیر تاریخ — د غبار اثر*

*۲- افغانستان په پنځه وروستیو پیړیو کې د فرهنګ اثر.*

**د دویم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د احمدشاه بابا واک ته د رسیدو پر مهال د هېواد ټولنیز و ضعیت څنګه و؟ | |
| **۲- روزنیـزې ، پـوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>۱- د احمدشـاه بابـا د سیاسـي واك پـر مهـال لـه اجتمـاعي شـرایطو سـره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- د زده‌کوونکو آشناکېدل له هغو اجتماعي زیانونو سره چې د یرغـل پـه پایلـه کې هېواد ته ورسیدل. | |
| **۳- د زده‌کـــــــړې روش ( میتودونه)** | ۱- توضیحي<br>۲- ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، توره تخته<br>تباشیر، چارت، نقشه او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري – تقریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنې کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبـړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د نوي لوست په اړوند د پوښتنو طـرح کـول، لـه نقـشو څخـه ګټـه اخیستنه، د یو تاریخي داستان ویل. | وخـت پـه دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ٦-١ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د نوي لوست سرلیك پر تخته لیکي<br>- ښوونکی د لوست اړوند لازمې څرګندونې ورکوي.<br>- ښوونکي د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي او وړاندیزونه اوري. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د ګروپ استازی د نورو په استازیتوب د موضوع لنډیز وړاندې کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- د یرغلګرو ځواکونو شتون- د ټولنیزو پرمختګونو د چټکتیا مخه نیوله.

۲- د یرغل په پایله کې سودا ګري او کرنه زیانمنه شوه.

۳- د خلکو بوختیا کرنه او د څارویو روزنه وه.

٤- یرغلګرو ځواکونو له تفریح ځایونو څخه د خپلو سترړیاوو د لرې کولو لپاره کاراخیست.

**۸- د ښوونکي لپاره (زیاتي معلومات)**

د افغانستان د استیلا دوران د هرات د تیموریانو له لړۍ وروسته د ایران د صفویانو د ماوراءالنهر د شیبانیانو او د هند د بابریانو په واسطه ١٤مې او ١٧مې پیړیو په اوږدو کې پیل شو چې د یرغلګرو هېوادونو د سیالیو له امله د افغانستان خلکو ته زښته ډېر زیانونه ورسیدل، دا ځکه چې دا مهال افغانستان مرکزي دولت نه درلود. په دې کابو دوو نیمو پیړیو کې په خواشینۍ سره نه یوازې دا چې افغانستان سره وویشل شو، بلکې د خپلې ودې او د پرمختګ له خوځښت څخه هم بیرته پاتې شو. د وخت دغه مهال مادي او معنوي انحطاط او بیرته پاتې والی لامل شمېرل کیږي.

په ۱۷۰۹ز کال کندهار کې د میرویس نیکه تر لارښوونې لاندې یو خپلواك ملي دولت رامنځ ته شو چې له ۳۰ کلو نو څخه یې زیات دوام وکړ. ترڅو په ۱۷٤۷م کال کې افغانستان یوځل بیا خپله ملي خپلواکي د ملي پیاوړي مشر افغاني احمدشاه بابا په مټ ترلاسه او یو ملي دولت را مینځ ته شو.

*قدرمن استادان کولای شي د زیاتو معلوماتو د ترلاسه کولو په موخه لاندنی منبع ته مراجعه وکړي:*

*- افغانستان در مسیر تاریخ – د غبار اثر*

**د دریم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| ۱- سرلیکونه | د سرلیکونو شاربنه | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د احمدشاه بابا واک ته له رسیدو څخه وړاندنې اقتصادی حالت څنګه و؟ | |
| **۲- روزنیـــزې ، پـــوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږی:<br>۱- مخکې له دې چې احمدشاه بابا قدرت ته ورسیږي د افغانستان اقتصادی شرایط څرنګه وو –له دې موضوع سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل<br>۲- له لاسي صنایعو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۳- له اقتصادي مهمو برخو سره لکه کرنه، څاروي روزنه، او لاسي صنایعو له سکتورونو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | ۱- توضیحي<br>۲- ګروپي مباحثوي | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته، تباشیر، چارت، نقشه. | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنې کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د یو تاریخي داستان ویل او یا د نوي لوست په اړوند پوښتنې | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند درس سرلیک پر توري تختې باندې لیکی.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د زده‌کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي لیکنې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي دلوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحات او لغات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- په سویل، لویدیځ او شمال ختیځو سرحداتو کې اقتصادي اوضاع ښه نه وه.

۲- درې مهمې اقتصادي برخې عبارت وي له کرنې، د څارویو روزنه او لاسي صنایع.

۳- فلزي پیسې ځکه ضرب ووهلې شوې، څو د کالیو په اخیستو کې ورڅخه کار واخیستل شي

٤- – د احمدشاه بابا تر واک دمخه د کندهار او هرات ښارونه د اهمیت لرونکي وو.

**۸- د ښوونکي لپاره (زیاتي معلومات)**

د اضافي معلوماتو د ترلاسه کولو لپاره د ښاغلو ښوونکو پاملرنه لاندې ټکو ته را اړوو:

له تاریخي پلوه د اقتصادي لاملونو مطالعه ځکه د اهمیت لرونکې ده چې په خپل وار په ټولنې کې د تولید د څرنګوالي ښودنه کوي او په اقتصادي جوړښت کې د تولید د وسایلو ټاکنه کوي. د صفویانو، شیبانیانو او مغولانو تر تیری دمخه د افغانستان اقتصاد په کرنې، د څارویو په روزنې او صنایعو ولاړ و. د افغانستان اقلیم د هر ډول نبات کرنې ته مساعد او جوړ و. د اوبو لګولو په برخې کې بندونو او ویالو ته ښه پوره پاملرنه کیده او دولتونو د مالیاتو د ترلاسه کولو په موخه خلك کرنې او څاروي ساتنې ته هڅول.

څاروي ساتنې هم د ملي اقتصاد یوه برخه جوړوله او ډیرو خلکو په دې ډګر کې کار کاوه او ورسره ورسره هڅه کیده چې د څارویو روزنې او ډیربښت ته پاملرنه وکړي. څو وکولای شي ښه ډیر محصولات ترلاسه کړي.

لاسي صنایعو په ابتدایي کارخانو سره په پراخه پیمانه تولیدات لرل او یوشمیر معادن او کانونه په غیرفني ډول سره ایستل کېدل او له داخلی اړتیا څخه زیات تولیدات بهرته صادریدل. همدارنګه د خلکو د اړتیا وړ شیان له بهر څخه دننه هېواد ته راوړل کېدل. له هند، ایران، چین او ماوراءالنهر سره افغاني صادرات او واردات په پراخه پیمانه ترسره کېدل او یو وخت داسې هم و چې کندهار د هندوستان د دروازې په توګه یادېده چې په خواشینی سره د افغانستان د ټوټه کېدو او اشغال وروسته دغه سوداګریز مرکزونه هم سره وپاشل شول او ملي اقتصاد ته په بشپړ ډول زیان ور واوښت.

قدرمنو ښوونکو! د ډیرو معلوماتو د ترلاسته کولو لپاره لاندنیو منابعو ته مراجعه وکړئ:

۱- افغانستان در مسیر تاریخ – د غبار اثر ۲- افغانستان په پنځه وروستیو پیړیو کې د فرهنګ اثر

د ځلورم لوست لارښود پلان

د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت

| | | |
|---|---|---|
| ۱- سرلیکونه | د سرلیکونو شاربنه | |
| د لوست موضوع | احمد شاه بابا څرنګه افغانستان بیا راژوندی کړ؟ | |
| ۲- روزنیزې ، پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د هېواد له بیا ژوندي کیدو سره د زده‌کوونکو پیژندګلوی.<br>۲- د ځمکني قلمرو د تامینولو سره د زده‌کوونکو پیژندګلوی.<br>۳- زده‌کوونکو ته وړتیا ورکول چې وکړای شي د افغانستان تاریخي جغرافیایي نقشه ترسیم کړي | |
| ۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه) | ۱- توضیحي<br>۲- ګروپي مباحثه | |
| ۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>نقشه، انځورونه او نور | |
| ۵- د ارزونې (میتودونه) | تحریري – تقریري | |
| ٦- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې | لومړنی کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د یو تاریخي داستان ویل او یا د نوي لوست په اړوند پوښتنې. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند درس سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي لیکنې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي دلوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې ګروپي بحث کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- د وخت په شتون سره زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- احمدشاه بابا د زمان خان زوی او په ۱۱۵۰ لمریز کال کې زیږیدلی دی.

۲- د افغانستان بیا را ژوندی کېدل او د امپراتورۍ رامنځ ته کول.

۳- د هېواد اقتصادي او سیاسي یو موټی توب او د خلکو هڅونه په ګټې او زیان کې.

ټولګي څخه بهر کړنې: احمد شاه بابا یو غښتلی شخصیت و او په پوځي ډګر کې یې د قدر وړ خدمتونه کړي دي.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

د ګرانو ښوونکو د زیاتو معلوماتو لپاره لاندې ټکي د اهمیت وړ دي:

احمدشاه بابا یوی مخوری او درنی کورنی ته منسوب ؤ. د ده له نیکونو څخه نیولي بیا تر اووه نسله پورې د ځواک او قدرت خاوندان وو او د هغوی اوامر د نورو قامونو له خوا منل کېدل. دا چې د قومونو مشران د شیر سرخ په جرګې کې د هېواد او خلکو اداره یو ۲۵ کلن ځوان ته سپاري څه تصادفي خبره نه ده، بلکې د ده خپل ذاتي شخصیت او شرایطو ده ته دا زمینه مساعده کړې وه چې خلک پرې باور وکړي او لویان واک او اختیار ده ته وسپاري. ده له هغو شرایطو څخه په ډېره مدبرانه توګه ګټه پورته کړه. احمدشاه بابا چې د یوې افغاني امپراتورۍ نقشه برابره کړې وه، د هغې د پراختیا او ټینګیدو لپاره یې په فعالیتونو او لازمو کړنو پیل وکړ، چې له امله یې د دغه میړني او پیاوړي امپراتور ۲٦ کلنه ویاړلې واکمني په پرلپسې جګړو په اصطلاح د آس په سر تیره شوه. خو له ده سره دا خبره تل مل وه چې په هر ډګر کې به د لوی څښتن تعالی (ج) په فضل او مرحمت سره سوبه او فتح د ده په برخه وه. احمدشاه بابا د هېواد په بیا رغاونه کې ډېره زیاته هڅه وکړه او په دې فکر کې و چې هېواد یې د نړۍ د پیاوړو هېوادونو په کتار کې ودریږي.

*ښاغلي ښوونکي دې د دې لوست د لا ښه پوهېدو په اړه د سید سعدالدین هاشمي د افغانستان معاصر تاریخ ته مراجعه وکړي.*

**د پنځم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د احمدشاه بابا اداري اصلاحات او نظامي فعالیتونه | |
| **۲- روزنیزې ، پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>۱- د احمدشاه بابا له اداري اصلاحاتو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- د احمدشاه بابا له نظامي فتوحاتو سره د زده‌کوونکو آشنا کیدل.<br>۳- زده‌کوونکي دې دنقشې پر مخ په جنوب لویدیځ او شمال کې د احمد شاه بابا د لښکر کشیو مسیرونه په نښه کړي. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | ۱- توضیحي<br>۲- ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، توره تخته<br>نقشه، قلم، تباشیر، چارت، او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري – تقریري | |
| **۶- پــه ټــولګي کــې د لوســت ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکې د نوي لوست په اړوند پوښتنې مطرح کوي یوه وجیزه وایي او یا ښوونکی یوه داسې پوښتنه کوي چې له لوست سره پوره اړه ولري او د یو تاریخي داستان ویل. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر تورې تختې باندې لیکی.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي ځرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي له د مباحثې وروسته له کومو ستونزو سره چې مخامخ شي له ښوونکی څخه وکولای شي پوښتنه وکړي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- د احمدشاه بابا د واکمنۍ ډول مطلقه شاهي وه.

۲- د احمدشاه بابا حکومت د نړۍ د نورو اسلامي هیوادونو په شان و.

۳- د احمدشاه بابا د پوځ (اردو) له منظمو او غیر منظمو ځواکونو څخه جوړشوی و.

٤- د احمدشاه بابا پوځي قواوې د سویل،شمال، او لویدیځ په لوري استول شوې وې .

۵- د احمدشاه بابا د سلطنت عواید د مالیاتو د راټولولو، غنایمو او جنګې غراماتو څخه تر لاسه کېدل.

په ټولګي کې دننه کړنې: د افغانستان د بیا را ژوندي کولو په خاطر اصطلاحات اړین وو.

ټولګي څخه بهر کړنې: احمد شاه بابا په ټولنیزو برخو کې دپوهې او پوره وړتیا خاوند و.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

د ګرانو ښوونکو د لا زیاتو معلوماتو لپاره لاندې ټکي د پام وړ دي:

احمدشاه بابا په اداري ډګر کې د یادونې وړ اصلاحات رامنځ ته کړل او یو منظم اداري سیستم یې د ګاونډیو هېوادونو په کتار کې رامنځ ته کړ.

احمدشاه بابا د خپلې امپراتورۍ د پراختیا، د پردیو د یرغلونو د مخنیوي او د پولو د ټاکلو لپاره پوځي خوځښتونه رامنځ ته کړل چې د همدغو سوقیاتو په پایله کې ډیرې سترې بریاوې د افغانانو په نصیب شوې. ده په لویدیځ کې خراسان، په سویل کې د هند ګورکاني دولت او په شمال کې د ازبک جنیدي دولتونوته په هغو قالبونو کې چې په خپله یې ټاکلي وو ځای ورکړ چې د دوی دنده او وظیفه د افغاني امپراتورۍ د دوام او ټینګښت لپاره وه.

د اسلام د دین خپراوی د غنایمو تر لاسه کول عمدتاً د فتوحاتو سبب او علت جوړاوه. ځکه یې د اردو منظمو او غیر منظمو لیکو ته پوره پاملرنه کوله.

*ښاغلي ښوونکي د دې له پاره چې په دې هکله لا زیات معلومات ترلاسه کړي د عبدالحی حبیبي، (تاریخ معاصر افغانستان) او د غلام محمد غبار (افغانستان در مسیر تاریخ) ته مراجعه وکړي.*

**د ښوونکي لپاره د لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د احمدشاه بابا د کارنامو په اړه څه پوهیږئ؟ | |
| **۲- روزنیزې ، پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د معاصر افغانستان د بنسټ ایښودونکي په توګه له احمد شاه بابا د سره زده‌کوونکو آشنايي.<br>۲- په نړیوالو چارواکي د احمدشاه بابا له نیک چلند سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل<br>۳- د زده‌کوونکو په دې خبره پوهیدنه چې څرنګه احمدشاه بابا ته د بابا لقب ورکړل شو.. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی( میتودونه)** | ۱- توضیحي<br>۲- ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>چارت – تباشیر- مارکر- نقشه او نور | |
| **۵- د ارزونې (میتودونه)** | تحریري – تقریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي د درسي توکو چمتو کول.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>- ښوونکې د احمد شاه بابا د شخصیت په اړوند یو مطلب وړاندې کوي.<br>- د یو تاریخي داستان بیانول. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند درس سرلیك پر تورې تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي لیکنې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل مینځ کې ګروپي بحث کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- د وخت په شتون سره دوه، درې زده‌کوونکي د ګروپ په استازیتوب لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- احمد شاه بابا تر شپږویشت کلونو سلطنت وروسته له نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

۲- په کورنیو او بهرنیو چارو کې احمدشاه بابا له ټولو سره په نیاو او عدالت چلند کاوه او له سوله ییزې لارې اداري چارې او د نورو مسایلو په حل وفصل کې انصاف په پام کې نیوه.

۳- تشریفات یې نه خوښیدل او پر تخت نه کیناست.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

- احمدشاه بابا د معاصر افغانستان بنسټ ایښودونکی دی ، ده په اداري او نظامي مسایلو کې ډیر لوی استعداد درلود او په ډیرې لږې مودې کې یې ځان لوړو پوړیو ته ورساوه. په هېوادني چارو کې یې له نرمۍ او انعطاف څخه کار اخیست – له مفتوحه هېوادونو سره یې د مفاهمې له لارې چلند کاوه – که څه هم چې د امپراتورۍ د پرختیا لپاره یې سوچ کولو – خو ددې تر څنګه یې هڅه کوله چې د امکان تر بریده له وینې تویېدنې څخه مخ نیوی وشي. دده د همدغو ښو ، غورو او نیکو کارونو او دده د لوړ شخصیت د درناوي په ویاړ ده ته د بابا لقب ورکړ شو.

*سرچینه: احمدشاهي تاریخ میر حسین (حسیني)*

**د اوم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا پوهیږي چې تیمور شاه ۲۰ کاله واکمني وکړه؟ | |
| **۲- روزنیـزې ، پـوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>۱- د تیمور شاه د سلطنت له مساعد شرایطو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل<br>۲- د تیمورشاه له کورنۍ او بهرنۍ کړنلارې سره د زده‌کوونکو اشنا کیدل.<br>۳- زده‌کـونکی وکـولای شـي د تیمـور شـاه د سـلطنت کـورنۍ سـتونزې تحلیـل کاندي. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولـو خرنګوالی ( میتودونه)** | ۱- توضیحي<br>۲- ګروپي مباحثه ای | |
| **۴- د لوســـت ورکولـــو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>چارت – نقشه- تباشیر- قلم- او نور | |
| **۵- د ارزونې (میتودونه)** | تحریري – تقریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکـو سـره سـتړې مـشې او روغبړ کـوي، د زده‌کوونکـو د جـسمې او روحـي حـالاتو څخـه اطمینـان حاصلوي.<br><br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>- ښوونکی یوه وجیزه وایي یا د لوست په اړوند یوه پوښـتنه کـوي او یو تاریخي داستان مطرح کوي. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۶-۱ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحات او لغات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- شهزاده سلیمان د وزیر شاه ولي خان په ملاتړ د سلطنت اعلام وکړ.

۲- د احمدشاه بابا په دربار کې حاکم دود دا و چې مشر زوېې د ولیعهد په توګه وپیژندل شي.

۳- د تیمور شاه د سلطنت ځانګړتیا دا وه چې د هېواد له پولو ساتنه او څارنه وکړي.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

تیمورشاه د احمدشاه بابا له اتو اولادونو څخه دویم زوی و. دی ډېر زړور او په اصطلاح یو سر تنبه انسان و، له دینه چې په ډېرو کارونو کې یې له ځانه تدبیر او زړورتیا ښودله، ځکه خو د احمدشاه بابا د پاملرنې وړ وګرځید. له دې امله به یې هغه ته ډېرې سترې چارې ورسپارلې.

په ۱۷۷۳م کال کې کله چې ستر احمدشاه بابا ناروغ شو، نو د دولت مشران یې راوغوښتل او د هغوی په وړاندې یې تیمورشاه د خپل ولیعهد په توګه وټاکه. تیمورشاه د خپلې واکمنۍ دوره له هغې امپراتورۍ څخه په ساتنې او دفاع کې تیره کړه کوم چې له پلاره ورته په میراث کې پاتې وه او د نورې پراختیا غوښتنې لپاره یې څه مینه نه ښکاره کوله. خو د ده عیب دا و چې خپله امپراتوري یې په خپلو اولادونو کې وویشله چې د ده همدغه کار د دغې امپراتورۍ د پاشل کېدو لامل هم وګرځېد.

*ښاغلي ښوونکی کولای شي په دې هکله د لا زیاتو معلوماتو د ترلاسه کولو لپاره د غلام محمد غبار (افغانستان در مسیر تاریخ) او د صدیق فرهنګ (افغانستان در پنج قرن اخیر) کتابونو ته مراجعه وکړي.*

**د اتم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د شاه زمان د واکمنۍ تګلارې پېژنئ؟ | |
| **۲- روزنیـــزې ، پـــوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>۱- د شاه زمان له شخصيت سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل<br>۲- د شاه زمان له تګلارې او پروګرامونو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۳- زده‌کوونکي وکولای شي چې د شاه زمان د حکومت د وخت پېښې تحليل کړي. | |
| **۳- د لوست وړانـدې کولـو څرنګوالی ( میتودونه)** | ۱- توضیحي<br>۲- ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوســـــت ورکولـــــو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>چارت، نقشه، انځور، قلم، تباشير او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحريري – تقريري | |
| **۶- په ټولګي کـې د لوسـت ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>- ښوونکی یو تاريخي داستان یا د لوست پـه اړونـد پوښـتنې مطـرح کوي. | وخت په دقيقې<br>۱۰ دقيقې |

| ۱-۶ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې او څرګندونې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي توضیحات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې مشاجره او مباحثه کوي.<br>- دوه زده‌کوونکي دې د مباحثې پایلې خپلو ټولګیوالوته واوروي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونو ته پاملرنه کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- د تاریخي منابعو په استناد شاه زمان یو پوه مدبر او د سیاسي بصیرت خاوند و.

۲- د زمان شاه حکومت د اروپا د لویو حوادثو (د فرانسې انقلاب) سره هم عصر دی.

۳- د شاه زمان لپاره خانانو او متنفذینو ستونزې را پیداکړې، چې وکولای شي خپل پروګرمونه پلي نه کړي.

٤- سیمې هیوادونو د استعمار په مرسته د شاه زمان لپاره ستونزې را پیدا کړي چې دده د موخو د پلي کولو پر مخ خنډ وګرځي.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

د زمان شاه کورني او بهرني پروګرامونه د هند د مسلمانو خلکو د سوکالۍ او پراختیا په موخه جوړ شوي وو.
له همدې امله د ده په وړاندې په ښکاره او پټه د هغو کسانو لخوا چې خپل امتیازات یې له لاسه ورکړي وو او هم د استعماري ځواکونو د جاسوسي شبکو له خوا ورته راز راز توطئې جوړیدې چې دغه دولت او دغه ټولواک له منځه یوړل شي.
د تیمورشاه مړینه او د واک پر ګدۍ د شاه زمان کېناستل د نړیوالو سترو پېښو سره برابره وه. په ۱۷۸۹م کال کله چې د فرانسې انقلاب اروپا په لړزه راوسته. له دې سره انګریزان په دې تشویش کې شول چې که چیرې فرانسه د دې انقلاب په زور بریالۍ شي. نو د دوی لومړنی کار به په ختیځ کې دا وي چې هند یا په اصطلاح دغه طلایي مرغۍ به له انګریزانو څخه واخلي. د همدغه ډار له مخې انګلیسانو د دې لپاره چې خپل تل پاتې واک د هند په وچه کې وساتي. نو ځکه خو په دې لټه کې شول چې افغانان لا کمزوري کړي. ځکه یې د (نفاق واچوه او حکومت وکړه) پالیسۍ ته مخه کړه او پر بنسټ یې د شاه زمان په ورونو کې د نفاق اور بل کړ. شاه زمان چې د یوه محبوس زمري په څېر هرې خوا ته خپلې انساني هلې ځلې پیل کړې چې د خپل نیکه ستر احمدشاه بابا امپراتورۍ یوځل بیا راژوندۍ کړي، خو په خواشینۍ سره د کورنیو او بهرنیو پېښو د طوفان څپو دی داسې وځپه چې نور نو له خوځښت او حرکته پاتې شو.
*د دغه بحث سرچینو ته د لاس رسۍ لپاره کیدای شي د میر غلام محمد غبار (افغانستان به یک نظر) کتاب ته مراجعه وشي.*

**د نهم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | پوهیږئ شاه محمود لومړی ځل څنګه واک ته ورسید؟ | |
| **۲- روزنیـــزې ، پـــوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږی.<br>۱- زده‌کوونکوي د شاه محمود د سلطنت له ځانګړتیاوو سره بلد شي.<br>۲- د شاه محمود د شخصیت او د هغه له بې کفایتۍ سره پیژندګلوی. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولـو څرنګوالی ( میتودونه)** | ۱- توضیحي<br>۲- ګروپي | |
| **۴- د لوســـــت ورکولـــــو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر. قلم- چارت- نقشه- فلم. | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري – تقریري | وخت په دقیقې |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښـوونکي سـلام اچـوي او لـه زده‌کوونکـو سـره سـتړې مـشې او روغبړ کوي.<br>د زده‌کوونکو لـه روحـي او جـسمي وضـیعت څخـه اطمینـان تـر لاسه کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>- ښوونکی د یوې وجیزې یا یوه حکایت په ویلو سره.<br>زده‌کوونکي د نوي لوست اوریدو ته تیـاروي یـا د نـوي لوسـت په اړوند پوښتنې کوي. | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقې | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | ۶-۱ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | - زده‌کوونکي د ښوونکی څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې مباحثه کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونـه تـه پاملرنـه کوي.<br>- د وخـت پـه شـتون سـره دوه درې تنـه زده‌کوونکي لوست له یاده وایي. | - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړونـد لوسـت سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښـوونکی د د پوښـتنو پـه کولـو سـره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصـه کوي. |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- د تفرقه واچوه او حکومت وکړه، د پالیسی د سرته سیدو پر بنسټ انګلیسان په دې بریالي شـول چـې د سـدوزو ورونو له مخالفتونو څخه ګټه پورته کړي.

۲- شاه محمود په بیلابیلو سیمو په تیره بیا په هـرات او د هېـواد پـه ختـیځ کـې د شـاه شـجاع او رنجیـت سـنګ لـه مخالفت سره مخامخ و.

۳- د شاه محمود له کړو وړو څخه د خلکو کرکې د شاه شجاع لپاره سلطنت ته د رسیدو موجبات برابر کړل.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

له ښاغلو ښوونکو څخه هیله کیږي چې لاندنیو ټکو ته پوره پاملرنه وکړي:

په موجوده بحث کې به ښه وي چې کورنیو لاملونو ته په پاملرنې سره د شاه محمود بې کفایتیو تـه د نیـوکي ګوتـه ونیوله شي. عیاشي او راحت غوښتنه یو له هغه لاملونو څخه و چې شاه محمود یې له ماتي سره مخامخ کړ.

له دې امله په بحث کې اړین بولو، څو د وزیر فتح خان رول ته یوه لنډه کتنه ولرو وزیر فتح خان لـه خپلـې دنـدې څخه په ګټې اخیستنې سره د ابدالیو د کورنۍ د رانسکوریدو عملیـه چټکـه کـړه. او هغـه پـه داسـې ډول کلـه چـې شاه محمود د شاه زمان ورور د هرات والي و. د شاه زمـان پـه وړانـدې یـې بغـاوت وکـړ. ده ډیـر جنګونـه پـه لاره واچول او د بارکزي وزیر فتح خان په مرسته بریالی شو چې شاه زمان خلع کړي او خپل ځـان یـې ټولـواک وبالـه. ده د شاه زمان سترګې ړندې کړې. شاه محمود به چې هر ځل ماته خوړه، نو د ایران دربار ته به یې منډه کړه. فـتح علي شاه قاجار له ده سره د ده په هغو جګړو کې چې له خپلو ورونو سره یې کولې، د پیسو او وسـلو مرسـته کولـه او هغه یې پیاوړی کاوه. د ایران پالیسي دا وه چې له دغو ورونو سره به یې په جنګ کې مرسـته کولـه چـې دغـه د جګړې او بې اتفاقی اور تازه پاتې شي.

*ښاغلي ښوونکي د خپلو زیاتو معلوماتو په خاطر لاندې کتابونو ته مراجعه کولای شي.*

1. *(شاهان متأخر افغانستان)، مؤلف علي خاني.*

*عروج بارکزایی ها، ژباړه عثماني صدقي او پژواک.*

**د لسم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( يو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرليکونه** | **د سرليکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د شاه شجاع د لومړي ځل واکمنی څرنگوالی؟ | |
| **۲- روزنيـــزې ، پـــوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هيله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږی.<br>۱- د شاه شجاع له شخصيت سره د سلطنت پـه لـومړي ځـل کـې د زده‌کوونکـو پيژندگلوي.<br>۲- له کورنيو او بهرنيو اغيـزو سـره چـې شـاه شـجاع يـې واک تـه ورسـاوه د زه کوونکو پيژندگلوي.<br>۳- د زده‌کوونکو پيژندگلوي د شاه شجاع د ادارې له سقوط سره. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولـو څرنګوالی ( ميتودونه)** | ۱- توضيحي<br>۲- گروپي مباحثه يي | |
| **۴- د لوســـــت ورکولـــــو مرستندويه او اړين توکي** | د لوست کتاب، د ټولگي توره تخته<br>تباشير.انځور، چارت، نقشه او نور | |
| **۵- د ارزونې ( ميتودونه)** | تحريري – تقريري | |
| **۶- په ټولگي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکـو سـره سـتړي مـشي او روغبـړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>- د يو تاريخي داستان ويل<br>- يا ښوونکی د درس په اړوند پوښتنی کوي. | وخت په دقيقې<br>۱۰ دقيقې |

| وخت په دقيقې | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | ۱-۶ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهيمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقيقې | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- زده‌کوونکي دلوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي په خپل مينځ کې مباحثه کوي، د زده‌کوونکو استازې د مباحثې پايلې خپلو ټولګيوالوته وړاندې کوي. | - ښوونکی د لوست په پيل کې د اړوند درس سرليک پر توري تختې باندې ليکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی يو ځل بيا لوست توضيح او خلاصه کوي. |

**د لوست پوښتنو ته ځوابونه**:

- د شاه محمود ناوړو کړه وړو د شاه شجاع د راتګ زمينه برابره کړه.

۲- د شاه شجاع روغې جوړې چې له بارکزايي ورونو سره يې وکړه – د دې پخاطر چې کورنۍ دښمني څه ناڅه سړې شي.

۳- د شاه شجاع په لومړنی سلطنت کې وزير فتح خان له شاه محمود څخه پلوي وکړه او کله چې له محبس څخه يې تيښته وکړه- هغه يې ټولواکی ته ورساوه.

**۸- د ښوونکي لپاره زياتې معلومات**:

- د قدرمنو استادانو پاملرنه لاندينو ټکو ته اړوو:

هغه تدابير چې شاه شجاع د خپلې واکمنۍ په لومړي سر کې نيولي و، د هغو ټولواکانو له تيروتنو څخه يې سر چينه نيوله کوم چې له هغه څخه دمخه وو.

شاه شجاع په خپل لومړني سلطنت کې ډيره هڅه وکړه، چې افغانستان له سياسي ګوښه والي څخه راوباسي،تاريخ پوهان په دې اند دي چې کوم تړون چې په ۱۸۰۹ زيږديز کابل کې دده او انګريزانو ترمنځ لاس ليک شو. د اصولو له مخې يې ددې لاره پرانيستله چې افغانستان دې د نړې له نورو هېوادونو سره اړيکې ولري او هغه لريوالی چې د افغانستان او نورو هېوادونو تر منځ رامنځ ته شوی‌و له منځه يوسي.

شاه شجاع له ۱۸۰۹م کاله څخه وروسته د انګليسانو تر سيوري لاندې د هند په لوديانه کې ژوند تير کړ، چې چې د انګليسانو د تيري په پايله کې په کابل کې واک ته ورسيد. خو د هغه دغه شرموونکی ژوند د انګليس او افغان تر جګړې وروسته پای ته ورسيد.


*سرچينې:*

*۱- د شاه شجاع پېښې – مولف شاه شجاع*

*۲- د افغان شپه يز يرغل – عبدالرحيم بيغم ژباړه*

**د یوولسم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د شاه محمود د دویمې واکمنۍ څرنګوالی | |
| **۲- روزنیــزې ، پــوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>۱- د شاه محمود له دوهم ځل سلطنت سره د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۲- د وزیر فتح خان له رول سره، چې څنګه یې شامحمود ځواك تـه ورسـاوه د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۳- زده‌کوونکي د شاه محمود د دوهم ځل د واکمنۍ پیښې وڅیړلی شي. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولـو څرنګوالی ( میتودونه)** | ۱- توضیحي<br>۲- ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوســـت ورکولـــو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر.مارکر، انځور، چارت او نقشه | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري – تقریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکـو سـره سـتړې مـشې او روغبـړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکې یو تاریخي داستان او یا هم له یوې درسي پوښتنې په کولـو سره زده‌کوونکو لوست ته پام اړوي. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر تورې دړې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګند ونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې بحث (خبرې اترې) کوي.<br>- دزده‌کوونکو استازی د مباحثې پایلې خپلو ټولګیوالوته وړاندې کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- وزیر فتح خان د شاه محمود له باور او اعتماد څخه په ګټې اخیستنې د خپلې کورنۍ د ځواک منتیا لپاره ګټه پورته کړه.

۲- د سدوزیو او بارکزیو د کورنیو تر منځ اختلافاتو د واک تر لاسه کولو او ساتلو څخه سر چینه اخیسته.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

شاه محمود د دویم ځل لپاره د وزیر فتح خان په مرسته د واک ګدې ته ورسید. هغه و، چې دی یې له بندي خانې څخه خلاص کړ او په پایله کې د سلطنت په اعلامولو بریالی شو، له دې امله شاه محمود وزیر فتح خان ته د اشرف الوزرا لقب ورکړ. له دغه کار او دغه ویاړ څخه وزیر فتح خان د خپلې کورنۍ د ځواکمنتیا لپاره ګټه واخیسته او خپل وروڼه یې په بیلابیلو سیمو کې په مهمو څوکیو وګمارل. دغه کار ددې لامل شو چې له امله یې وزیر فتح خان ووژل شو او واک له ابدالي کورنۍ څخه بارکزیو ته ولیږدید.

*سر چینه:*

*۱- افغانستان او برتانوي هند، سر څیړونکی عبدالوهاب فنایي.*

*۲- افغانستان په ۱۹ مه پیړۍ کې .. سید قاسم رښتیا*

**د دولسم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا د امیر دوست محمد خان د لومړي ځل واکمنۍ سره آشنایي لرئ؟ | |
| **۲- روزنیزې ، پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>۱- له دې خبرې سره چې څنګه امیر دوست محمد خان سلطنت ته ورسید د زده‌کوونکو آشنا کېدل<br>۲- د امیر دوست محمد خان له نظامې پلانونو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۳- د امیر دوست محمد خان د واکمنۍ د مهال د پېښو تحلیل.<br>٤- زده‌کوونکي وکولای شي د انګلسیانو پالیسي د هغه وخت افغانستان په اړه تحلیل کاندي<br>۵- زده‌کوونکي وکولای شي د تاریخي نقشو څخه ګټه واخلي. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | ۱- صنفي کنفرانس<br>۲- ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر، مارکر،نقشه، قلم، چارت | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري – تقریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي او د تیرو درسونو پوښتنې کوي.<br><br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>- ښوونکی د نوي لوست په اړوند پوښتنې کوي او یو تاریخي داستان بیانوي. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده کول او ارزونه | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر تورې دړې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده کوونکي د ښوونکي څرګند ونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده کوونکي په خپل منځ کې مباحثه کوي.<br>- زده کوونکي د خبرو اترو پایلې خپلو ټولګیوالوته وړاندې کوي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- د انګریز استازی هارلان د امیر دوست محمد خان له ورور سلطان محمد په ګټې اخیستنې سره په دې بریالي شو چې ددوی ترمنځ بیلتون رامنځ ته کړي .

۲- انګریزانو د امیر دوست محمد خان دربار ته د روسي پلاوي راتګ بهانه او پر افغانستان یې یرغل وکړ.

**د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

کله چې امیردوست محمد خان د کابل واکمن شو، نو د وخت دیني علماوو ورته سلا ورکړه چې ځان امیرالمومنین اعلان کړي چې د شرعي جهاد صلاحیت ورته پیدا شي. دوست محمد خان دغه مشوره ومنله او ددې شرعي لقب د تر لاسه کولو لپاره یې مراسم پر ځای کړل.

۱۸۳۵ زیږدیز کال کې سردار دوست محمد خان له یو شمیر خپلو ملګرو سره د بالاحصار په ختیځې برخې کې د اختر د لمانځه سیمې ته ورغی، دغه مهال میر حاجي د میرو اعظ کابلي زوی چې د ملایانو مشر و، د غنمو یو وړی یې د سردار دوست محمد په لنګی و ټومبه او د یو لږ ډیرو ساده تشریفاتو په ترڅ کې یې د امیرالمومنین لقب هغه ته ورکړ د هغه په نوم یې خطبه وویله او دده له نوم سره د امیرالمومنین لقب ځای پر ځای شو.

امیر دوست محمد خان به عزم جنګ و جهاد
کمر بست و بزد سکه، ناصرش حق باد

*سر چینه:*

*افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار*

**د دیارلسم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا پر افغانستان د انګریزانو د لومړي یرغل په اړه معلومات لرئ؟ | |
| **۲- روزنیزې، پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- پر افغانستان باندې د انګریزانو د یرغل له لاملونو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- د افغان او انګلیس د جګړې له پایلو سره د زده‌کوونکو پیژنګلوي او د دریمې- جګړې د کلونو د پېښو تحلیل او څیړنه.<br>٤- له نقشې نه کار اخیستل او د هغو لارو ښودل چې انګریزانو له هغو څخه په کار اخیستنې سره پر افغانستان یرغل وکړ. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | توضیحي او مباحثه یي | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر، مارکر، نقشه، قلم او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري – تقریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشي او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح له تاریخي نقشو څخه کار اخیستل او د یوه تاریخي داستان ویل. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکی ځرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې بحث کوي.<br>- یو زده‌کوونکی د خپلو ټولګیوالو په استازیتوب د درس پایلې وړاندې کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده وایي | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- پر افغانستان باندې د انګریزانو د سیاسي او نظامې تیري، ستراتیژي دا وه چې هغوی به ویل: هند باید له یرغل څخه وساتل شي.

۲- د لاهور تړون په ۱۸۳۸ زیږدیز کال کې د مکناټن، رنجیت سنګ او شاه شجاع تر منځ لاس لیک شو.

۳- انګریزي ځواکونو د جان کین او مکناټن په مشرې د بولان د درې او خیبر له لارې پر افغانستان یرغل وکړ.

٤- انګریزانو په کندهار کې له شاه شجاع څخه ژمنه واخیسته چې انګریزان دې تل په افغانستان کې پاتې وي.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

د ۱۸٤۱ زیږدیز کال په پیل کې له یوه پلوه د انګریزانو زور او فشار او له بله پلوه د ملت عکس العمل زیاتیده. په لومړي سر کې وړې وړې شخړې په اطرافونو کې رامنځ ته کیدې، چې د ۱۸٤۰ زیږدیز کا ل د نوامبر په میاشت کې یو غنډ انګریزي سر تیري په کوهستان کې پوپنا شول، په همدې مهال مشهور مبارز میر مسجدي خان پاڅون وکړ. په کابل کې یو پاڅون د نایب امین الله خان لوګري او عبدالله خان اځکزي په مشري په لاره واچول شو چې په ترخ کې یې د انګریز سیاسي استازی الکساندر برنس ووژل شو، همدغه پاڅونونه سره هم غږي شول د دوست محمد خان ځوان زوی وزیر محمد اکبر خان د دغه پاڅون مشري په غاړه واخیسته، چې پرنګیان خبرو اترو ته اړ شول او د ۱۸٤۲ زیږدیز کال په جنورۍ کې له کابل څخه د انګریزانو وتل پیل شو.

*سر چینه:*

*۱- افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار*

*۲- افغانستان معاصر، محمد ابراهیم عطایي*

**د ځوارلسم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا د شاه شجاع د دویم ځل واکمنۍ په اړه معلومات لرئ؟ | |
| **۲- روزنیزې ، پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- واک ته د دویم ځل د شاه شجاع د رسیدو څرنګوالی.<br>۲- د شاه شجاع د اداري جوړښت سره پیژندګلوي.<br>۳- د ملي مبارزینو د تشکیل د ضرورت تحلیل.<br>٤- په نقشه کې د هغو ځایونو او محلاتو تثبیت چیرته چې انګریزان ورکې استوګن شوو. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | توضیحي، مباحثوي | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته، تباشیر، فلم، چارت، نقشه او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري – تقریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړي مشي او روغبړ کوي.<br><br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>له تاریخي نقشې نه کار اخیستل، د یوه تاریخي داستان ویل او د پوښتنې طرح او د نوي لوست په اړوند پوښتنې. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۶-۱ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر تورې تختی باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل مینځ کې مباحثه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- انګریزان د خپل تل پاتې پاېښت لپاره په کابل، کندهار، کلات، غزني، وردګو، چاریکارو، بامیانو او جلال اباد کې ځای پر ځای شول.

۲- ظلمونه، د خلکو نه رضایت، د پوځ د لګښت دروند پیټی، د نرخونو جګوالی، لوړمالیات،له ټولواکه د خلکو زړه بدوالی دا ټول هغه لاملونو وو چې د انګریزانو پر ضدیې په پاڅون پیل وکړ.

۳- په افغانستان کې د انګریزانو ماتې د انګریز سیاسیون راویښ کړل او هغوی ته یې سخت ټکان ورکړ، چې د افغانستان په اړه خپل اند ته بدلون ورکړي او تر یوې مودې زمونږ هېواد په خپل حال پریږدي.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتې معلومات:**

د لاهور مشهوره معاهده چې د مثلث یعنې درې اړخیز تړون په نامه یادیږي، د ۱۸۳۸ زیږدیز کال د جولای په ۲۵ مه په سمله کې د ګورنر جنرال مهاراجه رنجیت سنګ، د انګلیس د استازی مکناټن او شاه شجاع تر منځ لاس لیک شوه. دغه تړون ۱۸ مادې درلودې چې په دې پریکړه شوې وه چې د کابل تخت به شاه شجاع ته ورکول کیږي او هم شاه شجاع په دې تړون کې ژمنه کړي وه چې له هیڅ هېواد سره به له انګریزانو او سکانو نه پرته اړیکې نه نیسي او دا یې هم ژمنه کړې وه چې په هرات کې به خپل وراره د هغه ځای د حکومت د مشر په توګه مقرروي او په چارو کې به یې مداخله نه کوي، د دغه تړون د ۱۸ مادې پر بنسټ که چیرې په انګریزانو او سکانو یرغل کیږي، نو شاه شجاع به له دوی سره مرسته کوي؛ د لاهور تر تړون وروسته مکناټن، برنس او د انګریز لښکر یو ځای له شاه شجاع سره حرکت وکړ او د ۱۸۳۹ میلادي کال په اپریل کې کندهار ته ورسید او هلته یې بله معاهده پر شاه شجاع وتپله. له کندهاره تر کابله تیت او پرک جګړې له انګریزانو سره وشوې، په هر حال انګریزان او شاه شجاع کابل ته راورسیدل او د ۱۸۳۹ میلادې کال د اګست په میاشت کې مکناټن دغه منفور او فراري پادشاه د کابل پر تخت کیناوه او امیر دوست محمد خان بخارا ته پنا یو وړه.

*افغانستان در مسیر تاریخ – میر غلام محمد غبار او د افغانستان معاصر تاریخ --- محمد ابراهیم عطایي*

**د پنځلسم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| ۱- سرلیکونه | د سرلیکونو شاربنه | |
| د لوست موضوع | آیا د امیر دوست محمد خان د دویمې واکمنۍ په اړه پوهیږئ؟ | |
| ۲- روزنیزې، پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د امیر دوست محمد خان په دویم ځل سلطنت کې دهغه د حکومت د ماهیت پیژندل.<br>۲- د امیر دوست محمد خان د مرکزي قدرت دټینګیدو او د هغه له سیاسي موخو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۳- د وزیر محمد اکبر خان د مړینې د لاملونو تحلیل .<br>٤- په نقشه کې له هغو ولایتونو سره د زده‌کوونکو آشناکېدل چې له مرکز سره یو ځای شوي وو. | |
| ۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه) | مباحثه، په ټولګي کې کنفرانس. | |
| ۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر نه مارکر، چارت، نقشه او نور | |
| ۵- د ارزونې ( میتودونه) | تحریري، تقریري | |
| ۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>له نقشې څخه استفاده او د یوه جالب تاریخي داستان ویل او د لوست په اړوند پوښتنې. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې مباحثه کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده وایي. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- امیر دوست محمد خان د تدبیر او پوهې نه په کار اخیستنې او د وزیر محمد اکبر خان د لوړ همت او فداکاریو له امله په دې بریالی شو چې د هېواد بیلابیل ولایتونه له بامیانه تر مزاره او له هراته تر کندهاره په مرکزي حکومت پورې وتړي.

۲- انګریزان له ماتې خوړلو وروسته دې ته اړ شول چې امیر دوست محمد خان د کابل، غزني، او جلال اباد د سلطنت د مشر په توګه وپېژني.

۳- وزیر محمد اکبر خان یو مبارز او ملي شخصیت وچې د هېواد د سیاسي استقلال ملي مبارزې او د انګریزانو پرضد په پاڅون کې یې لوی نقش درلود.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتې معلومات:**

په ۱۸۴۲ میلادي کال کې چې انګریزان په افغانستان کې له ماتې سره مخامخ شول، په هند کې د انګریز نوي ګورنر جنرال، امیر دوست محمد خان کلکتې ته وروغوښت، امیر د افغانستان له حوادثو او واقعاتو بې خبره او د ګورنر جنرال په ملاقات کې په ناڅاپې ډول ورته وویل شول، شرایطو دغه اړتیا رامنځ ته کړه چې ته بیا کابل ته د امیر په توګه ولاړ شي خو شرط دادی چې د انګریزانو د دوست، نه د دښمن په توګه. امیر حیران پاتې شو؛ د انګریز استازي زیاته کړه؛ د زیاتی وینې تویېدني څخه د مخنیوي په غرض خپل زوی سردار محمد اکبر خان ته ولیکه چې له جنګ نه لاس واخلي او انګریزي بندیان خوشي کړي، امیر له د ې پرته چې فکر وکړي، کاغذ یې را واخیست، لیک یې ولیکه او وزیر محمد اکبر خان ته یې راواستاوه، ددې تر څنګه انګریزانو بل لیک وزیر محمد اکبر خان ته واستاوه او هلته لیکل شوي وو که چیرې د امیر دوست محمد خان لیک ونه مني، انګریزان به امیر دوست محمد خان او دهغه کورنۍ چې د وزیر محمد اکبر خان میرمن هم پکې وه، لندن ته واستوي، د امیر دوست محمد خان او انګریز ګورنر جنرال د خبرو اترو وروسته په کلکتې کې یو ټوک حسیني تفسیر دوه پیلان – او اسان چې د طلایي یراق لرونکي وو امیر ته د ډالۍ په توګه ورکړل شول. امیر دوست محمد خان د افغانستان په لور راوخوځید.

سر چینه: ۱- افغانستان معاصر، ابراهیم عطایي ۲- افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار

**د شپاړسم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا د امیر شیر علي خان د لومړي ځل سلطنت سره آشنایي لرئ؟ | |
| **۲- روزنیزې، پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- له دې سره چې څرنګه امیر شیر علي خان سلطنت ته ورسید د زده‌کوونکو آشنا کېدل ؟<br>۲- له هغو ناوړو پېښو سره چې د شهزاده ګانو د کورنی نفاق څخه یې سر چینه اخیسته د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۳- زده‌کوونکي وکولای شي د حوادثو او وقایعو ارزونه او د هغو رامنځ ته کیدو لاملونه تحلیل کاندي<br>٤- په نقشه د هغو ځایونو په نښه کول چې د امیر شیر علي خان پر ضد یې پاڅونونه رهبري کیدل. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | صنفي کنفرانس، ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>مارکر، نقشه فلم او انځورونه | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تقریري - تحریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي | وخت په دقیقې |
| | د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>له نقشي نه استفاده او د یوه جالب تاریخي داستان ویل او د لوست په اړه پوښتنې | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقې | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | ۱-۶ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې مباحثه کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر تورې تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکوي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- امیر شیر علي خان د خپل پلار ځای ناستی او ولیعهد و، د پلار (امیر دوست محمد خلان) له مړینې وروسته یې په هرات کې سلطنت اعلان کړ او له موضوع څخه یې خپلو وروڼو ته د هېواد په ګوټ ګوټ کې خبر ورکړ.

۲- محمد اعظم خان له نظامي پلوه له امیر شیر علي خان سره د جنګیدو توان نه درلود نوځکه یې انګریزانو ته پناه یوړه.

۳- امیر شیر علي خان د سلطنت په لومړي پیر کې د بېلا بیلو دلایلو له مخې په دې بریالی نه شو چې خپل عمراني او انکشافي پلانونه عملي کړي. پدې دلیل چې د نوموړې لومړی ځل سلطنت ډېر لنډ و. د پروژو پلې کول ناشوني ووبلې خوا امیر شیر علي د ډیرو ستونزو سره مخامخ و چې دده وروڼو او دکورنی د غړو لخوا ورته پیدا شوي وه. نو ځکه یې اصلاحاتو ته وخت پیدا نکړ.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتې معلومات:**

افغانستان د محمد زایي وروڼو د واکمنی په دوره کې څه کم نیمه پیړۍ د ملوک الطوایفی تر اداري لاندې عمر تیر کړ او عام خلک تر فشار لاندې وو، ځمکه والو او اشرافو له دې وضعیت څخه ناوړه ګټه پورته کوله او د جګړې اور ته یې لمن وهله او مرکزي دولت یې ځپ ځپانده ساته، انګریزي سیاست هم په افغانستان کې له ځمکه والو او تاوتریخوالي څخه حمایت کاوه. انګریزانو په داسې حال کې چې دغه شهزاده ګان یې په واک کې درلودل او زموږ هېواد یې د سمندر له سواحلو لرې ساتلي و دغه راز یې د افغانستان د سوداګری د تر لاسه کولو لپاره هڅه کوله.

کله چې امیر شیر علي خان د سلطنت پر تخت کیناست، انګلیس دولت له پخوا څخه یوه ستره جګړه او یو شمیر تړونونه دده پر لار منلي وو، لاهم دغه سیاست دوام درلود او هم داخلي نفاق ته لمن وهل کیده. نو په داسې شرایطو کې امیر شیر علي خان دې ته اړ و، چې بیلابیلو پړاوو څخه تیر شي، دغه پړاوونه په درې دورو ویشل کیږي.

۱- د اختلال دوره او د شاهي کورنۍ جنګونه، ۲- دمرکزي دولت د استقرار او اجتماعي بدلونونو

۳- دانګلیس سیاسي او نظامي تیری.

سرچینه: افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار. تاریخ معاصر افغانستان – عطایي. تاریخ مختصر افغانستان – حبیبي

**د اولسم لوست لاربنود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي) ساعت**

<table>
<tr><td>۱- سرلیکونه</td><td colspan="2">د سرلیکونو شاربنه</td></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">آیا د امیر محمد افضل خان د شخصیت سره پیژندګلوي لرئ؟</td></tr>
<tr><td>۲- روزنیــزې ، پــوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې</td><td colspan="2">هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د امیـر محمـد افـضل خـان د حکومـت لـه ماهیـت او اداري نظـام سـره د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۲- د امیـر محمـد افـضل خـان قـدرت تـه د رسـیدو لـه څرنګـوالی سـره د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۳-د نقشې پرمخ د هغو سیمو پـه نـښه کـول چې پکـي د امیرشـیرعلی خـان او عبدالرحمن خان تر مینځ جګړه پیښه شوې وه.</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست وړانـدې کولـو څرنګوالی ( میتودونه)</td><td colspan="2">صنفي کنفرانس – ګروپي مباحثه</td></tr>
<tr><td>۴- د لوســـت ورکولـــو مرستندویه او اړین توکي</td><td colspan="2">د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر، مارکر، فلم، نقشه، چارت او نور</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې ( میتودونه)</td><td colspan="2">په تحریري او تقریري توګه</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶- په ټولګي کـې د لوسـت ورکولو او زده‌کولو کړنې</td><td rowspan="2">لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره سـتړې مـشې او روغبړ کوي<br><br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>له نقشې نه کار اخیستل او، د موضوع په اړه پوښتنو طرح او د یـوه تاریخي جالب داستان ویل</td><td>وخت په دقیقې</td></tr>
<tr><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۱-۶ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکوڅخه د پوښتنو په کولو سره هغوی ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکې څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې مباحثه کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- امیر محمد افضل خان د امیر عبد الرحمن په واسطه واک ته ورسید.

۲- امیر محمد افضل خان د خپل سلطنت په موده کې له داخلي ستونزو او جګړو سره مخ و.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

*د زیاتی معلوماتو لپاره قدرمن ښوونکي کولای شي لاندې منابعوته مراجعه و کړي:*

*۱- افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار*

*۲- افغانستان معاصر، ابراهیم عطایی*

*۳- تاریخ مختصر افغانستان، حبیبي*

**د اتلسم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د امیر محمد اعظم خان شخصیت پیژنی؟ | |
| **۲- روزنیزې ، پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- واک ته د امیر محمد اعظم خان د رسیدو له څرنګوالی سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- د نقشې پر مخ د هغو سیمو په نښه کول چې هلته امیر شیر علي خان، عبدالرحمن خان او محمد اعظم خان سره جنګیدلي دي.<br>۳- د عمراني پلانونو په اړه د سید جمال الدین افغان د افکارو تحلیل. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | ګروپي مباحثه او صنفي کنفرانس | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر- مارکر، نقشه، چارت او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **۶- په ټولګي کې د لوست ورکولو او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشي او روغبړ کوي. د زده‌کوونکو له روحي حالت څخه اطمینان حاصلوي.<br><br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د نوي لوست په اړه د پوښتنو طرح، له نقشې څخه کار اخیستل او د یوه تاریخي داستان ویلل. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ورزده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکي د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر تورې تختې باندې لیکي.<br>- ښـوونکی د اړونـد لوسـت مـتن د کتـاب لـه مخې لولي.<br>- ښـوونکی د پوښـتنو پـه کولـو سـره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکي یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې مباحثه کوي.<br>- زده‌کـوونکي د ښـوونکي ځوابونـه تـه پاملرنه کوي.<br>- د وخـت پـه شـتون سـره دوه درې زده‌کـوونکي لوسـت لـه یـاده تـشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- امیر محمد اعظم خان د سردار عبدالرحمن خان په مرسته سلطنت ته ورسید.

۲- امیر محمد اعظم خان د سید جمال الدین افغان له سلا او مشورو سره سم ددې جوګه شو چې یو لړ عمرانـي پروژې په کار واچوي، خو عمر یې کم و او عملي جنبه یې ونشوای نیولای.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

۱- د امیر محمد اعظم خان دوره ډیره لنډه وه ځکه یې مهمو سیاسي، اقتصادي او کلتوري پـروژو تـه وخـت پیـدا نکړ چې عملي بڼه غوره کړي.

*سر چینه:*

*افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار*

**د نولسم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا د امیر شیر علي خان د دویم ځل واکمنۍ سره پیژندګلوي لرئ؟ | |
| **۲- روزنیزې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د امیر شیرعلي خان له دویم سلطنت سره د زده‌کوونکو اشنا کیدل.<br>۲- د امیر شیر علي خان لـه عمراني او انکشافي پلانونو سره د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۳- د نوي تمدن سره د زده‌کوونکو پیژند ګلوی چې د امیر شیر علی خان او سید جمال الدین د هڅو په پایله کې مینځ ته راغلی.<br>٤- د شیرعلي خان د عصر د تکنالوجي فهرست.<br>۵- د امیر شیرعلي خان د حکومت په اړوند دانګلیس د پالیسۍ تحلیل. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | صنفي کنفرانس، ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>مارکر، نقشه، تباشیر، چارت او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبر کوي.<br><br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی د نوی لوست په اړه یوه پوښتنه کوي یا یو جالب تاریخي داستان وایي. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقې | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحات او لغات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه، درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند درس سرلیک په توري تخته باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. |

**۷- لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- امیر شیر علي خان په ۱۸٦۸ میلادي کال کې قدرت ته ورسید، په همدې وخت کې په اروپا کې د فرانسې له انقلاب څخه وروسته ځینې بدلونونه مینځ ته راغلي وو.

۲- امیر شیرعلي خان د خپل پوه ملګري سید جمال الدین افغان له مشورو سره سم د افغانستان په عصري کولو پیل وکړ.

۳- امیر شیر علي خان د نوي تمدن په پیژندنه کې په یو لړ اصلاحاتو لاس پورې کړ چاپ خانې یې راوړې او د شمس النهار جریده یې خپره کړه. لومړنی عامه ښونځی چې د ملکي او نظامي برخو لرونکی و جوړ کړ. منظم پوځ یې جوړ او د هغوی د اوسیدو لپاره یې اته پوځي مرکزو نه و ټاکل او همدارنګه د وسلود جوړونې فابریکه یې جوړه کړه.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

د پېښور خبرې اترې، سیدنور محمد شاه او پیلې:

د امیر شیرعلي خان او برتانوي هند د استازي ترمنځ تر زیاتو لیک لیږلو رالیږلو، وروسته داسې پریکړه وشوه چې یو افغاني پلاوی دې په کشمیر او پېښور کې له لویس پیلي سره خبرې وکړي. امیر شیرعلي خان د دې کار د سرته رسولو لپاره سیدنور محمد شاه وټاکه. یاد شوی پلاوی د ۱۸۷۷ز کال د جنوري په میاشت کې پېښور ته ورسید او له سر رابرت پیلي انګریزي استازي سره یې په خبرو اترو پیل وکړ. پیلي د لارد لیتین آند او نظر تأییداوه او په دې خبرې یې پښې خرلې او ټینګار یې کاوه چې افغانستان ته دې یو انګریز توکم استازی واستول شي خو سیدنور محمدشاه دا کار د جمرود تړون خلاف کار باله.

کوم چې په ۱۸۵۵- ۱۸۵۷ز کلونو کې د امیر دوست محمد خان او انگلیس ترمنځ رامنځ ته شوی و. پیلي وویل چې مور دا د یوې ضمیمې په توګه ځای په ځای کوو. سید نور محمدشاه څرګنده کړه چې زموږ تړونونه له پرنګیانو سره یو اړخیز دي. د ساري په ډول: داسې لاربښوونه کوي چې د انګریز د دولت دښمن د افغانستان د دولت دښمن دی، خو د افغانستان له لوري څه یادونه نه ده شوې، نو که ضمایمو ته څه اړتیا وي، بیا خو باید په ټولو هغو تړونونه کې ضمایم ځای په ځای کړو. له جنوري نه تر مارچ پورې د سیدنور محمدشاه او پیلي ترمنځ خبرې اترې روانې وې. خو هغه پایله چې انګلیس غوښته،ترلاسه یې نکړای شوه. سیدنور محمدشاه څرګنده کړه دا د پرنګي ستره خطا ده چې هڅه کوي تر څو انګریز توکم مامورین په افغانستان کې شتون ولري. موږ په پوره باور وایو چې افغانان دې کار ته چمتو نه دي او د مکناټن د ٤٠ کلونو مخکې تجربه ستاسو په یاد ده. د همدغو خبرو اترو په جریان کې د ۱۸۷۷ز کال د مارچ په ۲٦مې نیټې سیدنور محمدشاه یو ناڅاپه په حق ورسید او امیر د دغو خبرو د دوام لپاره وزیر حبیب الله خان پېښور ته واستاوه خو پیلي افغاني آستازي ته څرګنده کړه چې د لارد لیټن له لار ښوونې سره سم خبرې نورې پای ته رسیدلې دي.

قدرمنو استادانو! د لا زیاتو معلوماتو د لاسته راوړلو لپاره له لاندې منابعو څخه ګټه واخلئ:

۱- تاریخ مختصر افغانستان، عبدالحی حبیبي

۲- فشردهٔ تاریخ افغانستان، دکتور فاروق انصاري

**د شلم لوست لاربښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا پر افغانستان باندي د انګریزانو د دویم تیري په اړه معلومات لرئ؟ | |
| **۲- روزنیزې موخې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- پر افغانستان باندې د انګریزانو د یرغل له عواملو سره د زده‌کوونکو آشنا کول.<br>۲- د انګریزانو د دویم یرغل پر پایلو د زده‌کوونکو پوهیدل.<br>۳- په نقشې د هغو سیمو په نښه کول چې هلته انګریزان اوسیدل.<br>۵- د انګریزانو پر وړاندې د خلکو له غبرګون سره د زده‌کوونکو پیژندګلوي | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو خرنګوالی ( میتودونه)** | صنفي کنفرانس، ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر، مارکر، نقشه، قلم، چارت او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>- ښوونکی د لوست په اړوند یوه پوښتنه او یا یو تاریخي داستان مطرح کوي . | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-٦ د ښــوونکي د لوســت ورکولــو کړنـــې د مفـــاهیمو او پــــوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړونـد لوست سرلیک پـه تـورې دړې بانـدې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست مـتن د کتـاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوسـت توضـیح او خلاصه کوي. | - زده‌کــوونکي د ښــوونکي څرګنــدونې پــه خپلــو کتابچو کې لیکي.<br>- دوه زده‌کوونکي د لوسـت مـتن د کتـاب لـه مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحاتو او لغاتو ته پاملرنه کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونـه پـه خپلـو کتـابچو کې لیکي.<br>- د وخــت پــه شــتون ســره دوه درې زده‌کــوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- انګریزانو د امیر شیر علي خان دربار ته د روسانو د هیئت راتګ بهانه کړه او پر افغانستان یې یرغل وکړ.
۲- د ګندمک منحوس او کرغیړن تړون د ۱۸۷۹ ز کال د مې پـه میاشـت کـې د یعقـوب خـان او انګریـز اسـتازی کیوناری ترمنځ د ګندمک په سـیمه کـې لاس لیـک شـو، د دې تـړون پـر بنسـټ د کرمـې، سـیالکوټ، فوسـنګ، کوژک سیمي د ځائیو تر پولو پورې او لنډی کوتل په امانتي ډول انګریزانو ته وسپارل شو.
۳- د میوند جګړه د غازي محمد ایوب خان په مشرۍ د کندهار په میوند علاقه کې رامنځ ته شوه.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

یعقوب خان او د ګندمک تړون:

د ګندمک تړون د ۱۸۷۹ ز کال د مۍ په میاشت کې د یعقوب خان او انګریز آسـتازي کیونـاري تـرمنځ دننګرهـار ولایت د خوګیاڼو د ګندمک په سیمه کې لاسلیک شو. چې ځینې مواد یې په لاندې ډول دي:

۱. د دغه تړون تر لاسلیک کېدو وروسته د دواړو هېوادو ترمنځ دوستي او دایمي سوله رامنځ ته کیږي.
۲. د دغه تړون نه وروسته د افغانستان امیر خپل هغه اتباع چې د جنګ پر مهال یې د انګلیس لـه دولـت سـره خبرې اړیکې او د لیک استولو را استولو لړۍ روانه کړې وه، د رسمي فرمان له مخې وبښي.
۳. د افغانستان امیر اړ دی چې له دې تړون څخه وروسته کله چې له نورو هېوادو سره څه معاملې کوي، نـو د انګریز دولت موافقه به هرومرو په پام کې نیسي. افغان امیر حق نه لري چې له نورو هېوادو سره مخامخ

اړيکې ونيسي.

٤. د دواړو هېوادو د دوستۍ د ټينګښت او د دې دپاره چې د افغانستان پولې (سرحدات) د نورو له تيري څخه مصؤن پاتې شي، انګريز دولت لازمه بولي چې خپل يو دايمي استازی افغانستان ته واستوي.

٥. د دې له پاره چې د دواړو هېوادو دوستي تل پاتې وي او هم د دې له پاره چې انګريز سرتيري په ډاډمنتيا سره د افغانستان له خاورې ووځي. د سيالکوټ ولايت، د فوشنګ سيمه د کوژک تر غره، د کرم علاقه د ځاځيو تر پولو پورې او د مشرقي شاو خوا او لنډی کوتل دې انګريزانو ته وسپارل شي. (کُرم، پشين او سيبۍ) به په تل پاتې او قطعي توګه نه وي او دغه سيمې به په داسې ځمکو يادوو چې امانت سپارلې شوي دي او بيا به مسترد کړل شي. څکه نو دغه سيمې به د اړينو لګښتونو له وضع کولو وروسته افغانستان ته ورکړل شي او يوازې اداره او ساتنه يې په بريتانيا پورې اړه لري.

٦. له کُرم څخه تر کابله پورې د تلګراف مصارف د انګريز او ساتنه به يې د امير په غاړه وي.

٧. امير د ځان او نورو سردارانو له خوا ژمنه سپاري چې د انګريز له استازو او نورو هغو کسانو سره چې د سوداګرۍ په منظور افغانستان ته راځي، شرافتمندانه معامله وکړي او د هغوی په شخصي معاملو کې به مداخله نه کوي.

*د زياتو معلوماتو لپاره د عطايي اثر (تاريخ معاصر افغانستان). د غبار اثر (افغانستان در مسير تاريخ) او د حبيبي اثر (تاريخ مختصر افغانستان) ته مراجعه کولای شئ.*

**د یویشتم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د مرکزي ځواک د ټینګښت په اړوند د امیر عبدالرحمن خان ونډه څرنګه وه؟ | |
| **۲- روزنیزې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د مرکزي قدرت په ټینګښت کې د امیر عبدالرحمن خان له ونډې سره د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۲- د مرکزی قدرت له مفهوم سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۳- په زده‌کونکو کې د امیر عبدالرحمن خان د واکمنۍ د سیمو د انځور رسم کولو توانمندي.<br>٤- له مرکز څخه د تیښتې د مخ نیوي په اړوند د زده‌کوونکود ذهني ظرفیت وده. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | توضیحي ، ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته، تباشیر، نقشه، چارت او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | شفاهي او تحریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشي او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د یوه تاریخي داستان ویل او د پوښتنو مطرح کول. | وخت په دقیقې<br>۱۰ دقیقې |

| ۱-۶ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړونـد درس سرلیک په تورې تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړونـد لوسـت مـتن د کتـاب لـه مخې لولي.<br>- ښوونکی د زده‌کوونکـو پـه ذهـن کـې پیـدا شویو پوښتنوته ځواب وايي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کـوونکي د ښـوونکي څرګنـدونې پـه خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې مباحثه کوي.<br>- د وخـــت پـــه شـــتون ســـره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- انګریزانو له ماتې څخه د مخه په ۱۸۸۰ زیږدیز کال کې له سردار عبدالرحمن خان سره مکاتبه درلـوده او د هغـه سلطنت یې په رسیمت وپېژانده.

۲- امیر عبدالرحمن خان د دولت د چارو د ښه سمون په خاطر د دوو لاندنیو دندو په سرته رسولو کې مکلف و.

۱- د دولت جوړول. ۲- اداري اصلاحات

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

زموږ خاورې ته دوو تیریو زیان اړولی و. دولت عملاً شتون نه در لود. کابل خپل اهمیت له لاسه ورکـړی و. د کـار او بار خاوندان له ډېرو ستونزو سره مخامخ وو. د دولـت جوړښـت او اداري اصـلاحات د امیـر عبـدالرحمن خـان د دولت جوړولو دوه سترې ځانګړتیاوې وې چې باید عملي شوې وای.

د امیر عبدالرحمن خان رول د مرکزي ځواک (قدرت) په ټینګولو کـې جـوت و. امیـر عبـدالرحمن خـان د پـوځ د پیاوړتیا لپاره پیسو ته سخته اړتیا درلوده. له دې امله یې په مستقیمه او غیر مستقیمه توګه مالیات ترلاسه کول او هغـو ته یې زیاتوالی ورکړ. د هېواد په ګوټ ګوټ کې یې پاڅونونه ښه په کلکه وځپل. د کورنیـو او بهرنیـو ډېـاوونو لـه امله یې د دیورند شرموونکی تحمیلي تړون لاسلیک کړ او د نورستان خلک یې د اسلام په دین مشرف کړل.

*ښاغلي ښوونکی کولای شي دغو آثارو ته سر ورښکاره کړي:*

*۱- افغانستان در مسیر تاریخ تألیف غلام محمد غبار.*

*۲- افغانستان در پنج قرن اخیر، تألیف میر محمد صدیق فرهنګ.*

**د دوه ويشتم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( يو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرليکونه** | **د سرليکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د امير حبيب الله خان د سلطنت په اړه څه پوهيږئ؟ | |
| **۲- روزنيزې ، پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هيله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>۱- د امير حبيب الله خان د حکومت له ماهيت سره د زده‌کوونکو پيژندګلوي.<br>۲- د امير حبيب الله خان د دورې له اصلاحاتو سره د زده‌کوونکو پيژندګلوي.<br>۳-زده‌کوونکي وکولای شي د امير حبيب الله خان د وخت فرهنګي پروګرام تحليل کاندې. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی ( ميتودونه)** | توضيحي مباحثه يي | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندويه او اړين توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>چارت، نقشه، تباشير، مارکر او نور | |
| **۵- د ارزونې ( ميتودونه)** | تحريري تقريري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي، د زده‌کوونکو د جسماني او روحي حالت اطمينان لاسته راوړي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د يو تاريخي داستان ويل د پوښتنو مطرح کول. | زمان په دقيقې<br>۱۰دقيقې |

| ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهيمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقيقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پيل کې د اړوند لوست سرليک په توري تختې باندې ليکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی يو ځل بيا لوست توضيح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل مينځ کې مباحثه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له ياده وايي. | ۳۵ دقيقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- په اداري تشکيلاتو کې درې منشيان وو، د دربار، د بهرنيو چارو او د داخلي چارو منشي.

۲- د دولت پرمختګ د پوهنې له پراختيانه پرته ممکنه نه دی

۳- د وړې او بدلو او څرمنو صنعتونو ته پاملرنه، د دې له پاره وه چې د وسله والو ځواکونو اړتياوې رفع شي.

**۸- د ښوونکي لپاره زياتي معلومات:**

امير حبيب الله خان د اعليحضرت امير عبدالرحمن خان زوی په داسې وخت کې د چارو واګې په لاس کې واخيستې چې په هېواد کې بشپړ امنيت و د يوه پياوړي دولتي نظام بنسټ ايښودل شوی و، ده د هېواد پرمختګ د پوهنې په پراختياپورې اړوند باله، ځکه خوېې ملکي او نظامي ښوونځي پرانيستل، د حبيبي او حربي ښوونځيو رسماً په کار پيل وکړ دلته يو لړ پياوړې مشروطه غوښتونکي وروزل شول، دوی د پوهنې د تعميم او خپلواکی لپاره ډيرې هڅې وکړې، تخنيکي ماهران وروزل شول او د سړکونو او واټونو جوړولو ته يې پاملرنه وکړه.

سر چينې:

*۱- افغانستان در پنج قرن اخير، مولف مير محمد صديق فرهنګ.*

*۲- تاريخ معاصر افغانستان، سعدالدين هاشمي.*

**د درویشتم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د افغانستان خلکو څرنګه خپله خپلواکي له انګریزانو څخه لاس ته راوړه؟ | |
| **۲- روزنیزې پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د خپلواکي د کلمې له مفهوم سره دزده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- له دې خبرې سره چې د استعمار په لیري کولو سره خپلواکي څرنګه لاس ته راځي د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۳- زده‌کوونکي په دې بریالی شي چې له تاریخي او تخنیکي نظره وسله وا ل قوتونه پرتله کړي. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | توضیحي او ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته، تباشیر، نقشه، چارت او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br><br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د یوې تاریخي کیسې یا یوه حکایت ویل او د نوی لوست په اړوند پوښتنې. | زمان په دقیقې<br>۱۰دقیقې |

| وخت په دقيقې | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | ٦-١ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهيمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقيقې | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل مينځ کې مباحثه کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له ياده وايي. | - ښوونکی د لوست په پيل کې د اړونـد درس سرليک په تورې تختې باندې ليکي.<br>- ښوونکی د اړونـد لوسـت مـتن د کتـاب لـه مخې لولي.<br>- ښوونکی يو ځل بيا لوست توضيح او خلاصه کوي. |

**۷- لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- په ۱۹۱۹ زيږديز کال کې افغانانو د اعليحضرت امير امان الله خان په مشرۍ استقلال تر لاسه کړ، دغه نيکمرغه لاس ته راوړنه د ټول ملت له پلوی برخمنه وه.

۲- د اعليحضرت امير امان اله خان غازۍ اصلاحات په دوو مرحلو کې تحقق موندلی دی.

۱- ۱۹۱۹-۱۹۲٤ م

۲-۱۹۲٤-۱۹۲۸ م

**۸- د ښوونکي لپاره زياتي معلومات:**

د اعليحضرت امير حبيب الله خان سراج **الملة** والدين تر وژلو وروسته وسله والو ځواکونو، بد لون غوښـتونکو کړيـو اود افغانستا ټولو خلکو د امان الله غازي له طرحو څخه ملا تړ کاوه، امان الله خان پـه دې بريـالی شـو، څـو سـلطنت اعلان کړي او په نياو عدالت او خپلواکی يې ډيرټينګار کاوه، وسله وال ځواکونه په درې لوريو کې تيار سئ شول، او په دغو درې ګونو ځواکونو کې سردار محمد نادر شاه، سردار عبدالقدوس خان اعتماد الـدو لـه او صـالح محمـد وګمارل شول. د مالی او تخنيکي او نظامي تجهيزاتو له پلوه د افغانان وسله وا ل پوځونه د انګريـزي پوځونـو سـره د پرتلې وړنه وو، انګريزانود افغانانو احساسات درک کړل او د افغانستان استقلال او خپلواکي يې ومنله او په رسـميت يې وپيژندله له انګريزانو سره د خبرواترو په اړوند د افغانستان له لوري علـي احمـد خـان د هيئـت مـشرۀ. د امـان الله خان اصلاحات په دوو پړاووکې سرته ورسيدل. خو په خواشينی سره چې د ټـولنې او ټـولنيزو قـشرونو ټيټـه پوهـه د کورنيو او بهرنيو استخباراوتو د توطئو ښکار شول چې بالآخره په هېواد کې دلتـه او هلتـه شورشـونه وشـول چـې پـه پايله کې اعليحضرت امير امان الله خان غازي په ډيره مسالمت آميزه توګه له واکمنۍ نه لاس واخيـست او اروپـا تـه کډوال شو.

*سرچينې:*

*۱- افغانستان در دهۀ اول قرن بيستم، پوهاند صديقي.*

*۲- افغانستان در مسير تاريخ، مؤلف مير غلام محمد غبار.*

**د څلورويشتم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (يو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرليکونه** | **د سرليکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د امان الله خان د مسافرتونو برياوې څه وې ؟ | |
| **۲- روزنيــزې پــوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هيله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>۱- د اعليحضرت امان الله خان د حکومت سره د نړۍ د نورو هيوادونو د اړيکو په اړه د زده‌کوونکو پيژندګلوي.<br>۲- د زده‌کوونکو د پوهې لوړوالی او وده چې وکړای شي د اماني دولت د معاهداتو ماهيت درک کړي.<br>۳- زده‌کوونکي وکولای شي د نقشې پر مخ هغه هيوادونه په نښه کړی چې امان الله خان هلته سفر کړی و.۱۹۲۷-۱۹۲۸ز. | |
| **۳- د لوســـت د وړانـــدې کولـــــو څرنګـــــوالی ( ميتودونه)** | توضيحي، مباحثه يي | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندويه او اړين توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>انځور، نقشه، تباشير، چارت، قلم او نور | |
| **۵- د ارزونې ( ميتودونه)** | تحريري تقريري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي، د زده‌کوونکو د روحي او جسمي حالاتو څخه اطمينان حاصلوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د نوي درس په اړوند پوښتنې او د يو تاريخي داستان ويل. | زمان په دقيقې<br>۱۰دقيقې |

| ۶-۱ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهيمو او پوهې ور زده‌کول اوس ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقيقې |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی د لوست په پيل کې د اړوند درس سرليک په توري تختې باندې ليکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی يو ځل بيا لوست توضيح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې مباحثه کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له ياده تشريح کوي. | ۳۵ دقيقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- کله چې امير امان الله خان غازي په فرانسې کې استوګنه لرله، له فرانسو يا نو سره د کلتوري تړون په لاس ليک بريالی شو.

۲- د مصطفی کمال اتاترک لخوا غازي امير امان الله خان ته د ختيځو هېوادونو د خپلواکی د لارښود لقب ورکړل شو.

**۸- د ښوونکي لپاره زياتي معلومات:**

اعليحضرت شاه امان اله خان غازي د نړۍ هېوادونو ته له دې امله په مسافرت لاس پورې کړ، چې د ژوند په بيلابيلو برخو کې د هغو هېوادونو له پرمختګونو څخه خبرتيا ترلاسه کړي. د ده په سفر کې بيلابيلې موخې نغښتې وې، د سارې په ډول: ده تر استعمار او استثمار لاندې هېوادونو خلک د حاکمو استعماري نظامونو ماهيت ته متوجه کړل او داسې فکر يې کاوه چې خپلواکي د دوام لرونکو هڅو په ترڅ کې ترلاسه کېدای شي. له کلتوري او تخنيکي برخوڅخه کتنې دا زمينه رامنځ ته کړه، چې له هغو څخه په استفادې سره د خپل هېواد په ودانولو کې له ټولو امکاناتونه ګټه پورته کړي، خو په پوره خواشينې سره بايد ووايو چې بهرنيو استخباراتو له ځينو کورنيوکړيوسره لاس يو کړ او دغو اصلاحاتو مخه يې ونيوله او په دې توګه اعليحضرت شاه امير امان الله خان غازي له سياسي ډګر نه ځان ګوښه کړ او يو ځل بيا هېواد له ستونزو او بحران سره مخامخ شو.

*سر چينې:*


*۱- تاريخ مختصر افغانستان، مولف عبدالحی حبيبي*

*۲- افغانستان معاصر، مولف سيد سعد الدين هاشمي.*

**د پنځه ویشتم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | کلکانی حبیب الله څرنګه واک ته ورسید؟ | |
| **۲- روزنیــزې پــوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- له هغو ټولنیزو اصلاحاتو سره چې په پایله کې شورشونه را مینځ ته شوه د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- و اک ته د کلکـاني حبیـب الله د رسیدو د څرنګـولي سـره د زده‌کوونکـو پیژندګلوي.<br>۳- د کلکاني حبیب الله د پیر تحلیل او تجزیه. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی( میتودونه)** | توضیحي ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>مارکر، چارت، انځورونه او نقشي | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبر کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د نوی لوست په اړوند پوښتنې، د یو تاریخي داستان ویل. | زمان په دقیقې<br>۱۰دقیقې |

| ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند درس سرلیک په تورې تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د زده‌کوونکو په ذهن کې پیدا شویو پوښتنوته ځواب وایي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي ځرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- دوه زده‌کوونکي د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي په خپل منځ کې مباحثه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه**:

۱- د لویې جرګې مصوبې د روحانیونو د ګټو په خلاف وی. د جرګې استازي د هغو په وړاندې غلي پاتې شول.

۲- د حبیب الله کلکاني پلویانو د خپلو کړنو په لومړي وخت کې د خلکو د مالونو په لوټولو لاس پورې کړ.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات**:

ډیر مؤرخین په دې آند دي چې د امیر حبیب الله کلکاني واکمني د اعلیحضرت غازي امیر امان الله له هغو اصلاحاتو سره د عکس العمل په توګه تړاو لري، کوم چې مخکې له وخته وو او د ده له اوږده سفر سره نیغه اړیکه لري.

د دغو شورشونو په را ولاړولو کې هغه یوشمیر فرصت غوښتونکي عناصر او ورسره ورسره یوشمیر پټې او ځرګندې جاسوسي شبکې ډیرې اغیزمنې وې. په داسې شرایطو کې یو شمیر کسانو د ځان په ګټه استفاده وکړه.

د حبیب الله کلکاني په لنډه دوره کې کورنۍ او بهرنۍ سوداګرۍ په ټپه ودریده. کرنه او د اهل کسبه کارونه هم ګډوډ شول د هېواد سترې لارې د غلو او لار وهونکو ښکار شوې.د لویو ښارونو خلك په ساتنه او دفاع مشغول وو. دغه د دفاع او تعرض دنده هم د ځوان نسل په غاړه وه. د هغو ځوانانو پر غاړه کوم، چې اصلي دنده یې کرنه، د څارویو ساتنه، ښوالي صنعت او یا نور مشروع کسبونه وو، ټول قانوني او عام المنفعه مؤسسات لکه پوهنه، روغتیا، سوداګري، صنایع او فابریکې له کاره لویدلې وې. د دولت حیثیت او پرستیژ په بهرني سیاست او کورنۍ اداره کې راپریوتی و.

په داسې شرایطو کې ځینو کسانو د پردیو په لمسون له کلکاني حبیب الله (سقاو د زوی) څخه ملاتړ وکړ او پر امان الله خان یې ډګر تنګ کړ و، چې په پایله کې دې ته اړ شو چې سیاسي واك پریږدي.

*ښاغلي ښوونکي دې له لاندې سرچینو څخه ګټه واخلي:*

1. *بحران نجات، مؤلف غلام محی الدین انیس*

*افغانستان در قرن ۱۹، مؤلف سید قاسم رښتیا*

**د شپږویشتم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| ۱- سرلیکونه | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا پوهیږئ چې محمد نادرشاه څرنګه واک ته ورسید؟ | |
| **۲- روزنیزې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د محمد نادر شاه د پیر له ځانګړتیا وو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- د دې پیر له نظامنامو سره د زده‌کوونکو پیژنګلوي.<br>۳- د زده‌کوونکو د فهم لوړوالی چې وکولای شي د ۱۹۳۳ کلنو پیښې وڅیړي. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | توضیحي، ګروپي او مباحثه یي | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر، چارت، نقشه، قلم او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبر کوي، د زده‌کوونکو له روحي او جسمي حالاتو څخه ډاډ تر لاسه کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>- د یو تاریخي داستان ویل او د پوښتنو مطرح کول. | زمان په دقیقې<br>۱۰دقیقې |

| ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقه |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند درس سرلیک په توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- دوه زده‌کوونکي د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحاتو او لغاتو ته پاملرنه کوي.<br>- زده‌کوونکي په خپل مینځ کې مباحثه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- اعلیحضرت محمد نادر شاه د هیواد د خپلواکۍ په بیرته اخستنه کې ډیر ستر رول درلود.

۲- اعلیحضرت محمد نادر شاه د مشرانو او متفذینو ملاتړ ته اړتیا درلوده.

۳- اعلیحضرت محمد نادر شاه زده‌کوونکو ته د مډالونو د ویش په وخت کې ووژل شو.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

ښاغلي ښوونکي دې د لا زیاتو معلوماتو لپاره لاندې ټکو ته پام واړوي:

محمد نادر شاه له سلطنت څخه د مخه په بریتانیا کې تحصیل کړی ؤ. محمد نادر خان د محمد یوسف خان زوی د سردار محمد یحیی خان لمسی او د سردار سلطان محمد طلایي کړوسی و. سلطان محمد د امیر دوست محمد خان ورور او دواړه بیا د سردار پاینده خان زامن وو. له هغه وروسته چې امیر عبدالرحمن خان د افغان او انګریز له دویمې جګړې وروسته پر کابل مسلط شو. محمد نادر خان له خپلې کورنۍ سره برتانوي هند ته کډه وکړه.

دغه کورنۍ د امیر حبیب الله خان سراج الملله والدین د سلطنت په دورې کې د ۱۹۰۱ زیږدیز کال په وروستیو کې بیرته کابل ته راستنه شوه. امیر حبیب الله خان د نادر خان پلار یوسف خان او تره آصف خان د خپل ځان لپاره سلاکارانو په توګه وټاکل چې بیا دغه کورنۍ د مصاحبینو (سلا کارانو) په نامه یادیده.

په ۱۹۰۸م کال کې محمد نادر خان جنرالۍ رتبې ته ورسید او کله چې د ځوانۍ په موده کې یې په پکتیا کې د منګلو د نارامیو د (اغتشاش) اور مړ کړ. نو له دې سره سم د ټولواک د حضور د نایب سالار په توګه په دنده وګمارل شو.

په اماني دورې کې یې د افغانستان د خپلواکۍ د بیرته ترلاسه کولو لپاره د جنوبي محاذ مشرتوب په غاړه درلود او هلته یې پرنګیانو ته داسې خوله ماتونکې ماته ورکړه چې د تل لپاره به د افغان تاریخ ویاړ وي.

د سقاو د زوی (حبیب الله کلکاني) تر اغتشاش وروسته د تاج او تخت مدعي نه و. خو اردو او خلکو دی دې ته اړ کړ چې دا دنده ومني.

*د لا زیاتو معلوماتو لپاره درانه ښوونکي کولای شي د غلام محمد غبار (افغانستان در مسیر تاریخ) دوهم ټوک ته سر ورښکاره کړي.*

**د اوه ویشتم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا پوهیږئ چې محمد ظاهر شاه ٤٠ کاله سلطنت وکړ؟ | |
| **۲- روزنیــــزې پـــوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>۱- د محمد ظاهر شاه له ٤٠ کلن سلطنت سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- د محمد ظاهرشاه لـه هغـه ملاتړ سـره د زده‌کوونکـو آشـنا کېـدل چې ده لـه تعاوني او بانکي پانګه والو او سوداګرو سره درلوده<br>۳- د دغې دورې له کلتوري، عمراني او اجتمـاعي بـدلونونو سـره د زده‌کوونکـو آشنا کېدل. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی( میتودونه)** | توضیحي، ګروپي مباحثه | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>چارت، انځور، نقشه، فلم او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکـو سـره سـتړې مـشې او روغبـر کوي او د روحي او جسمي حالاتو څخه ډاډ تر لاسه کوي. | وخت پـه دقیقې |
| | د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>د یو تاریخي داسـتان ویـل او د د لوسـت پـه اړونـد د پوښـتنو مطـرح کول. | ۱۰ دقیقې |

| ١-٦ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنـې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر تورې تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړونـد لوسـت مـتن د کتـاب لـه مخې لولي.<br>- ښــوونکی د پوښــتنو پــه کولــو ســره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښـوونکی یـو ځـل بیـا لوسـت توضـیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې پـه خپلـو کتابچو کې لیکي.<br>- دوه زده‌کـوونکي د لوسـت مـتن د کتـاب لـه مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصـطلاحاتو او لغـاتو تـه پاملرنـه کوي.<br>- زده‌کـوونکي د ښـوونکي ځوابونـه پـه خپلـو کتابچو کې لیکي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کـوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- محمد ظاهر شاه په ۱۹ کلنۍ کې د خپل پلار تر وژنې وروسته دکورنۍ په ملاتړ پادشاهۍ ته ورسید.

۲- د محمد ظاهر شاه د سلطنت په پیل کې په ملکي تـشکیلاتو کـې د اصـلاحاتو اړتیـا محـسوسیده، ځکـه خـوېې اصلاحاتوته مخه وکړه.

۳- صدراعظم شاه محمود خان ته د دموکراسۍ د پلار لقب ورکړای شوی و.

٤- د ناپیلیتوب د نهضت بنسټ ایښودونکي صدراعظم محمد داود ترڅنګ جمال عبدالناصـر، جـواهر لعـل نهـرو او عبدالرحیم سکارنو و.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

ښاغلي ښوونکی دې د زیاتو معلوماتو د ترلاسه کولو لپاره لاندینیوټکو ته پام ونیسي.

کله چې اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د سلطنت اعلان وکړ دا مهال دی ۱۹ کلن ځوان و. د ده د سلطنت په پیل کې د ده تره د صدارت دنده ترسره کوله. محمد ظاهر شاه د محمد نادر زوی و. کله چې په ۱۹۱٤زکال کې محمد ظاهر شاه په فرانسې کې د وزیر مختار په توګه په دنده وګمارل شو. نو دا مهال محمد ظاهر شاه چې ۱۲ کلن و له خپل پلار سره فرانسې ته ولاړ او هلته یې فرانسوي او انګریزي ژبې زده‌کړې، کله چې محمد نادر شاه په کابل کې د ټولواکۍ دنده رسماً ترلاسه او په کار یې پیل وکړ. شاه خپل زوی محمد ظاهر یې له فرانسې کابل ته راوغوښت، چې د ده په حضور او په خپل هېواد کې ښوونه، روزنه او پالنه ترلاسه کړي او دغه راز په اصطلاح

د خپل هېواد له خوی بوی سره آشنا شي. محمد نادر شاه یو کال وروسته د خپل تره د زوی سردار احمدشاه خان لور چې حمیرا نومېده، محمد ظاهر شاه ته په نکاح کړه او بیا یې په حربي پوهنتون کې شامل کړ. هغه یې په عاجله توګه ولوست او یو کا ل وروسته د وسله وال پوځ د وزارت د مرستیال په توګه وګمارل شو. محمد ظاهر شاه د ډیرې لوړې حوصلې خاوند و او په کار کې به یې د ستومانتیا احساس نه کاوه. اوږدې بیانیې یې نه ورکولې. په مجالسو کې یې لږې خبرې کولې او د نورو خبرو ته به یې ډیر غوږ نیوه. په خبرو کې ډیر باادب او د مقابل لوري ټول اړخونه یې په پام کې نیول. د محمد هاشم خان په صدارت کې د ادارې او د نظام د تحکیم لپاره ډیر اغیزمن ګامونه پورته شول. او کله چې سردار شاه محمود خان صدارت ته ورسید. نو ورسره سم سیاسي ښه فضا په ټولنې حاکمه شوه او یوشمیر قانوني آزادئ رامنځ ته شوې. پارلماني مبارزو ته لاره هواره شوه. سیاسي انجمنونه او د محصلانو اتحادیې راځرګندې شوې. خپرونکو ارګانونو د خلکو د اذهانو روښانولو ته مخه کړه.

د شاه محمود د صدارت په پای کې د صدارت د چارو د سرته رسولو دنده د محمد داؤد خان ته تر غاړې شوه، ده یولړ ګټورو چارو ته یې مخه کړه. د پښتون او بلوڅ له حقه او مشروعو غوښتنو څخه یې ښه په کلکه پلوی وکړه د لویو لارو او هوایي ډګرونو جوړولو ته یې پاملرنه وکړه. د هېواد لومړي او دویم پراختیایي پلانونه یې جوړ او په تطبیق او عملي کولو یې پیل وکړ.

*د لا ډیرو معلوماتو د ترلاسه کولو لپاره ښاغلی ښوونکی کولای شي دغو سرچینو ته سر ورښکاره کړي.*

*۱- د غلام محمد غبار تألیف، افغانستان در مسیر تاریخ، دویم ټوک او د هېواد کلنی.*

**د اته ویشتم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

<table>
<tr><td>۱- سرلیکونه</td><td colspan="2">د سرلیکونو شاربنه</td></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">د چین د هېواد معاصر تاریخ</td></tr>
<tr><td>۲- روزنیزې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې</td><td colspan="2">هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>۱- په چین کې له مروجو ژبو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- د ۱۹٤۹ میلادي کال له انقلاب سره د زده‌کوونکو پیژند گلوي.<br>۳- په چین کې له مذاهبو سره د زده‌کوونکو پیژند گلوي.<br>٤- له دې مهارت سره چې څرنګه باید له نقشې نه استفاده وکړي د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>٥- د ۱۹٤۸ او ۱۹٤۹ میلادي کلو له پېښو سره د زده‌کوونکو پیژندگلوي.<br>٦- د مذهبي مراسمو او شعایرو د اجرا کولو په اړه د ذهنیت او تفکر رامنځ ته کول</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)</td><td colspan="2">د یوه صنفي کنفرانس جوړول او ډله ییزه مباحثه</td></tr>
<tr><td>۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي</td><td colspan="2">د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>مارکر، نقشه، قلم</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې ( میتودونه)</td><td colspan="2">تحریري، تقریري</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې</td><td rowspan="2">لومړنی کړنې:<br>ښوونکي سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>۱- د یوه جالب تاریخي داستان ویل.<br>۲- د پوښتنو طرح کول.</td><td>وخت په دقیقې</td></tr>
<tr><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکو ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحاتو او لغاتو ته پاملرنه کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- د چین نفوس د ۲۰۰٦ کال له احصایې سره سم یو ملیارد او درې سوه ملیونه تنه وو او ۲۲٪ د نړۍ وګړي جوړوي.

۲- چیني ژبه د الفبا حروف نه لري، بلکې د معانیو نماینده ده او په مختلفو لهجو تکلم صورت مومي.

۳- د چین رسمي ژبه ماندارین ده

٤- په چین کې مروج او معمول مذهبونه عبارت دې له، بودیزم، تاتوسیسم او کنفوسیسم.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

چین د ایشیا په لویه وچه کې پروت دی. د وګړو د شمیر له امله په نړۍ کې لومړی مقام لري او د مساحت له پلوه د نړۍ دریم ستر هېواد دی. د ختیځ پلوه له شمالي کوریا د شمال پلوه له مغلستان او روسیې، له لویدیځ پلوه له قرغزستان ، تاجکستان، افغانستان، پاکستان،هند او د جنوب له لوري له لاوس او ویتنام سره ګډې پولې لري هم دا رنګه دغه هېواد له جاپان، جنوبي کوریا، مالیزیا او اندونیزیا سره هم پولې لري.

په چین کې دغه څلور ژبې ډیرې عمده دي چیني ترکي ژبه، ترکي مغولي ژبه، هندو اروپایي ژبه د هند و چین جنوب شرقي ژبه.

په ۲۲۰ – ۲۲۵ میلادي کلو کې (زایي لون) یوه چینایي مخترع کاغذ اختراع کړ.

دکال ۱۹٤۹ ز په انقلاب کې مائو د نانچانګ د غورځنګ له سر تیرو سره یو ځای شو، د دغو سر تیرو مشري (جوده) کوله، ددغو دواړو لارښوونکو یو ځای توب د دې لامل شو چې کمونیستي ځواکونه له تړتېه کیدو څخه وژغورل شي، د کمونست ګوند د سرو لښکرو و لومړنی مرکز د (چنګ کانګ شن) ښارو.

*سر چینه:*

*(چین)، د زهرا طاهري امین کتاب*

**د نهه ویشتم لوست لاربنود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | آیا د پاکستان له تاریخ او خاورې سره آشنایي لرئ؟ | |
| **۲- روزنیـــزې پـــوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د پاکستان له خپلواکۍ او استقلال سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- د بنګله دیش له خپلواکۍ او له پاکستان څخه یې د هغه له بیلیدنې سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۳- د پاکستان د خپلواکۍ له ورځې سره د زده‌کوونکو آشنا کول.<br>٤- له نقشې نه د استفادې په اړه د زده‌کوونکو د پوهې د کچې لوړول.<br>٥- زده‌کـوونکي وکـولای شـي چـې د هنـد پـر شـبه قـارې بانـدې د انګریـز د حاکمیت تحلیل کاندي.<br>٦- د نه تاوتریخوالي د غورځنګ په اړه د ذهنیت او تفکر رامنځ ته کول | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی ( یتودونه)** | د ښوونکي له خوا څرګندونې، او صنفي کنفرانس | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر، مارکر، نقشه، قلم | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنۍ کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره سترې مشې او روغبر کوي. | وخت په دقیقې |
| | د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>۱- د نوي لوست په اړه د پوښتنو طرح کول.<br>۲- د یوه تاریخي داستان ویل. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر تورې تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د زده‌کوونکو د پوښتنو په کولو سره هغوی ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحاتو او لغاتو ته پاملرنه کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- پاکستان د ۱۹٤۷ ز کال دآګست په ۱٤ نیټه له انګلیس څخه خپلواکي ترلاسه کړه.

۲- پاکستان له څلورو ایالتونو څخه جوړ شوی دی چې نومونه یې داسې دي:

پښتونخوا (صوبه سرحد) بلوچستان، سند، پنجاب.

۳- فرقه یي سیالي او ژبنی بیلوالی د دې لامل شو چې بنګله دیش له پاکستان څخه بیل شي.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

پاکستان هغه ځوان هېواد دی چې د هند د شبه قارې تر وېش وروسته په دوو جلا هیوادونو هند او پاکستان خپله خپلواکی ترلاسه کړه. د پرنګیانو (ختیځ هندي کمپنی) د پاکستان د خپلواکی څخه د مخه د دوو پیړیو په شا او خوا په دې سیمې واکمني درلوده کله چې انګریزان په هندي شبه قارې باندې حاکم وو. وخت نا وخت د هندوانو، نورو ملیتونو، اقوامو او مسلمانانو لخوا له راز راز غبرګون او پاڅونونو سره مخامخ کېدل. دغه پاڅونونه د شلمې پیړۍ په لومړۍ لسیزې کې ډیر شول. ملي شخصیتونه لکه فخر افغان خان عبدالغفار خان، هندي ستر شخصیت فقید مهاتما ګاندي او محمد علي جناح د مبارزې ډګر ته راودانګل. د خلکو په ویښولو او د استعمار، استبداد او زبیښناک په وړاندې د دوی د یوموټې کولو لپاره یې ډیرې مهمې او د قدر وړ کارنامې او چارې ترسره کړې.

د نه تاوتریخوالي او عدم خشونت د غورځنګ د سترو بنسټ ایښودونکو څخه یو ډیر لوی شخصیت فخر افغان خان عبدالغفار خان و.

ده د نه تاو تریخوالي غورځنګ د ودې او کمال پوړی ته ورساوه. خلک یې د تیري، ظلم او استبداد پـه وړانـدې د سوله ییزو مبارزو کولو ته را بلل او هڅول. دغه ستر شخصیت د خپل ژوند تـر وروسـتیو سـلګیو پـورې لکـه د یـوه پولادین هسک او دنګ لوړ غره په شان خپل دغه واقعاً انساني او وجداني رسـالت د سـرته رسـولو لپـاره د مبـارزې په ډګر کې ولاړ پاتې شو.

د پاکستان درامنیځته کیدو له لومړیو شپو ورځو څخه د لویدیځ او ختیځ پاکستان تـرمنځ یـولړ سـتونزې تـر سـترګو کېدې. په ختیځ پاکستان کې ورو او ناڅیزه پرمختګ، ژبني اختلافات، په لویدیځ اړخ کې د سختو جګـړو پیـښېدل او د انساني تلفاتو زیاتوالی د دې لامل وګرځېـدل چې بـالاخره ختـیځ پاکـستان د بنګلـه دیـش تـر نامـه لانـدې لـه لویدیځ پاکستان څخه بیل شي. هماغه و چې په ۱۹۷۳ز کال کې د بنګله دیش هېواد عمـلاً د نـړۍ پـه نقـشه کـې د یوه آزاد او خپلواک هېواد په توګه راڅرګند شو.

*ښاغلي ښوونکي د زیاتو معلوماتو د لاس ته راوړلو په موخه کولای شي له لاندنیو منـابعو څخـه معلومـات تـر لاسـه کړي:*

*۱- تاریخ و سرزمین پاکستان – د ایران خارجه وزارت له نشراتو څخه.*

*۲- تاریخ جوامع اسلامي ۱۹-۲۰ پیړۍ قدس رضوي.*

**د دیرشم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د ایران معاصر تاریخ | |
| **۲- روزنیزې پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د پهلوي کورنۍ قدرت ته د رسیدو په اړه د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- په ایران کې د پهلوي دورې له مهمو اقداماتو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي.<br>۳- په ایران باندې د نړیوالې دویمې جګړې اغیزو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>٤- د ایران اسلامي انقلاب په اړه د تفکر او ذهنیت رامنځ ته کول.<br>۵- د نقشې ښه ګټه اخستنه. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی( میتودونه)** | صنفي سمینار، مباحثې او مشاجرې | |
| **۴- د لوست ورکولو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر، مارکر، نقشه، قلم او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبر کوي. | وخت په دقیقې |
| | د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>۱- دیوه تاریخي جالب داستان ویل او د نوی لوست په اړوند پوښتنې. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د زده‌کوونکو د پوښتنو په کولو سره هغوی ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- دوه زده‌کوونکي د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحات او لغات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونو ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- رضا شاه پهلوي د کودتا په واسطه له احمد شاه قاجار څخه قدرت ترلاسه کړ.

۲- د رضاه شاه لومړنۍ اقدامات عبارت وو له: د تلویزیوني شبکې جوړول، د مرکزي بانک تاسیس، د سترو بندونو جوړول، د شوروي او ایران ترمنځ د ګاز نل لیکې رامنځ ته کول، د هسته یي زیرمو بنسټ ایښودل او سنا مجلس دښځو غوره کول.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

په ۱۳۲۰ هـ ش کال د دویمې نړیوالې جګړې په ترڅ کې که څه هم چې د ایران ټولواک محمد رضا شاه پهلوي په دې جګړې کې د بې پلوي توب اعلان هم وکړ، خو بیا هم له هغه ځایه چې ایران له آلمان سره ښې تودې اړیکې درلودې، نو له هماغه ډاره د متفقینو ځواکونو شوروي اتحاد د شمال او انګریزانو د سهیل له لوري پر ایران یرغل وکړ. د رضاشاه اردو پرته له دې چې څه ناڅه غبرګون ښکاره کړي د دې بهرنیو یرغلونو په وړاندې تسلیم شوه چې له امله یې د ایران اصلي ښارونه لکه تهران د متفقینو د ځواکونو په لاس کې پریوت.

د متفقینو مهمې موخې له دې عملیاتو څخه عبارت وې له:

- د دې ډاډ ترلاسه کول چې آلماني ځواکونه به د ایران له خاورې د شوروي اتحاد پر سویلي پولو تیری ونکړي.
- د ایران له سهیلي نفتو څخه ډاډمنتیا چې د بریتانیا د سمندري ځواکونو د سون توکي یې برابرول.
- دا ډاډ چې آلمان به د ایران له نفتو څخه کار نه اخلي.
- د شوروي اتحاد د جبهې لپاره د فارس د خلیج او د کسپین بحیرې له لارو د مهماتو او تسلیحاتو د استولو لپاره د ایران له سراسري اوسپنې پټلۍ څخه کار اخیستنه او بشپړتیایي او په دویمې نړیوالې جګړې کې د ایران د ستراتیژیک اهمیت له امله متفقینو ایران ته (د بریالیتوب پل) لقب ورکړی و.

*د لا زیاتو معلوماتو لپاره د عبدالرفیع حقیقت د سیاسي تقویم تاریخ او د ډاکتر نصرالله صالح اثر (تاریخ معاصر ایران) ته سر ورښکاره کړئ.*

**د یودیرشم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (یو درسي) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د ازبکستان معاصر تاریخ | |
| **۲- روزنیــــزې پـــــوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د ازبکستان له موقعیت او لنډ تاریخ سره د زده‌کوونکو آشنا کول.<br>۲- د ازبکستان له معمولو او مروجو ژبو سره د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۳- د ازبکستان له مهمو ایالتونو سره د زده‌کوونکو آشنایي.<br>٤- له نقشې څخه استفاده کول.<br>٥- د ازبکستان له مهمو کورنیو سره چې په دې هیواد کې یې حکومت کړی د ذهنیت رامنځ ته کول. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولـو څرنګوالی ( میتودونه)** | توضیحي – مباحثه ای | |
| **۴- د لوســـــت ورکولـــــو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>تباشیر، نقشه، قلم، چارت او نور | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټـولګي کـې د لوسـت ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښـوونکی سـلام اچـوي او لـه زده‌کوونکـو سـره سـتړې مـشې او روغبړ کوي. | وخـت پـه دقیقې |
| | د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>۱- د لوست د موضوع په اړه د پوښتنې طرح کول<br>۲- له نقشې نه کار اخیستل.<br>۳- او د یوه تاریخي داستان ویل. | وخـت پـه دقیقې |

| ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک پر توري تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی اړوند لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د پوښتنو په کولو سره زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصه کوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- دوه تنه زده‌کوونکي د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحات او لغات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخت په شتون سره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- ترک تباران د شپږمې زېږدیزې پیړۍ په لومړیو کې په منځنۍ اسیا کې استوګن شول.

۲- اوسنی ازبکستان ۱۲ ایالته او یو خپلواکه جمهوریت لري.

۳- د ازبکستان عمده صنایع عبارت دي له مسو ، ډبرو سکرو فولادو نساجي او خوراکي توکي.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات:**

د اوسني ازبکستان هېواد له تاریخي دورو څخه مخکې هم یوه مسکونی سیمه وه، اوښو تمدنونو ور کې وده کړې ؤه مقدوني سکندر له میلاده د مخه په ۳۲۹ کې دغو سیمو یرغل کړی، د سمرقند په ګډون ډېر ښارونه یې وران کړل او له باختري یونان سره یې دغه هېواد وتاړه، اعرابو د اوومې میلادي پیړۍ په دوهمې نیمایي کې دغه سیمې ونیولې، خلك یې مسلمان کړل او عربي رسم الخط یې ورکې دود کړ، ساماني اسماعیل په ۸۷۳ زیږدیز کال کې ماورالنهر او خوارزم ونیول او د سامانیانو سلطه یې په بخارا کې ټینګه کړه، همدارنګه د لسمې میلادي پیړۍ په اوږدو کې سلجوقي قبایل په تدریجي ډول سره په ماورالنهر کې استوګن شوې او په دې بریالي شول چې د دولسمې میلادي پیړۍ تر لومړیو پورې د اوسني ازبکستان ډېرې برخې ونیسي. په دیارلسمې میلادي پیړۍ کې مغلو د مرکزی ایشیا ډیرې برخې ونیولې. د تیمور د حکومت پروخت سمرقند د دې امپراتورۍ پلازمینه وه، ازبکانو خپل نوم له یو واکمن څخه چې ازبك خان نومېده او په ۱۲۸۲- ۱۳٤۱کلونو کې چې د اسلام په دین مشرف شوی اقتباس کړی دی.

*مأخذ:*

*ازبکستان، د ایران د بهرنیو چارو وزارت له نشراتو څخه.*

**د دوه دیرشم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

<table>
<tr><td colspan="2">د سرلیکونو شاربنه</td><td>۱- سرلیکونه</td></tr>
<tr><td colspan="2">د تاجیکستان معاصر تاریخ</td><td>د لوست موضوع</td></tr>
<tr><td colspan="2">هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د تاجکستان له تاریخ او موقعیت سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل<br>۲- له هغو کورنیو سره چې په تاجیکستان کې یې واکمني درلوده د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۳- د تاجکستان د استقلال له ورځې سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>٤- له ۱۹۹۱ میلادي کال څخه وروسته د پیښو او وقایعو تحلیل.<br>٥- له نقشې نه ګټه اخستنه.</td><td>۲- روزنیـــزې پـــوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې</td></tr>
<tr><td colspan="2">صنفي کنفرانس، ګروپي مباحثه</td><td>۳- د لوست د وړاندې کولـو څرنګوالی ( میتودونه)</td></tr>
<tr><td colspan="2">د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>مارکر، نقشه، قلم، چارت او نور</td><td>۴- د لوســـــت ورکولـــــو مرستندویه او اړین توکي</td></tr>
<tr><td colspan="2">تحریري، تقریري</td><td>۵- د ارزونې (میتودونه)</td></tr>
<tr><td>وخت په دقیقې<br><br>۱۰<br>دقیقې</td><td>لومړنی کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبر کوي.<br><br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>۱- له نقشې څخه استفاده<br>۲- د نوي لوست په اړه د پوښتنو طرح<br>۳- د یوه جالب تاریخي داستان ویل</td><td>٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې</td></tr>
</table>

| ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولـو کړنـې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکي د لوست په پیل کې د اړوند لوست سرلیک په تورې تختې باندې لیکي.<br>- ښـوونکي د اړونـد لوسـت مـتن د کتـاب لـه مخې لولي.<br>- ښـوونکی د زده‌کوونکـو د پوښـتنو پـه کولـو سره هغوی ارزوي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصـه کوي. | - زده‌کـوونکي د ښـوونکي توضـیحات پـه پخپلو کتابچو کې لیکي.<br>- دوه تنـه زده‌کـوونکی د لوسـت مـتن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحات او لغات په خپلـو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي ځوابونه ته پاملرنه کوي.<br>- د وخـــت پـــه شـــتون ســـره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- تاجکستان د افغانستان په شمال کې پروت او له چین قرغزستان، ازبکستان سره ګډه پوله لري.

۲- د شوروی تر ړنګیدو وروسته تاجکستان خپله سیاسي خپلواکي ترلاسه کړه.

۳- په تاجکستان کې مشهور و کورنیو، لکه. غزنویانو، سـلجوقیانو، خوارزمـشاهیانو، مغولانـو، تیموریـانو او ازبکـانو واکمني کړي ده.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات**

د عباسیانو د خلافت په دورې کې، په خجند، بخارا، سمرقند، مرو، نیـشاپور او بلـخ کـې اقتـصاد او سـوداګری وده وکړه، په لارو کې امنیت ټینګ شو، ښـارونو وده وکـړه، خـو د دې ترڅنـګ د ځینـو سیاسـي لاملونـو لـه املـه لـه عباسیانو سره یو لړ مخالفتونو هم سر راپورته کړ چې په پایله کې یې یو لړ خپلواک حکومتونه رامنځ ته شـول، یـو له دغو حکومتونو څخه د سامانیانو حکومت و چې د تاجکستان په تاریخ کې ډیر اهمیت لري چې لـه پیژنـدل شـو شاهانو څخه یو یې احمد بن نصر ساماني و، د سامانیانو په وخت کې د سوداګری، صنعت او کرنې پـه برخـو کـې ډیر پر مختګونه وشول، په فرغانې او زرافشان کې د سرو زرو، مسو، سپینو زرو، کانونـه را وایـستل شـول، دغـه راز په دې دورو کې د سفالي، ظروفو او لاسي صنایعو کاروبار ډیره ښه وده کړې وه.

**د درې دیرشم لوست لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت ( یو درسي ) ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **۱- سرلیکونه** | **د سرلیکونو شاربنه** | |
| **د لوست موضوع** | د ترکمنستان معاصر تاریخ | |
| **۲- روزنیـــزې پـــوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | هیله ده زده‌کوونکي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱- د ترکمنستان له موقعیت سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>۲- د ترکمنستان له معمولو اومروجو ژبوسره د زده‌کوونکو پیژندګلوي.<br>۳- د ترکمنستان له نفوسو او د خاورې له پراخوالي سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.<br>٤- له نقشې څخه دګټې پورته کولو لپاره د زده‌کوونکو د ظرفیتونو لوړول.<br>۵- د ۱۹۹۱ ز کال په اړه په زده‌کوونکو کې د ذهنیت او تفکر رامنځ ته کول. | |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو څرنګوالی ( میتودونه)** | توضیحي او مباحثه ای | |
| **۴- د لوســـــت ورکولـــــو مرستندویه او اړین توکي** | د لوست کتاب، د ټولګي توره تخته<br>مارکر، نقشه، قلم، چارت او نور. | |
| **۵- د ارزونې ( میتودونه)** | تحریري، تقریري | |
| **٦- په ټولګي کې د لوست ورکول او زده‌کولو کړنې** | لومړنی کړنې:<br>ښوونکی سلام اچوي او له زده‌کوونکو سره ستړې مشې او روغبړ کوي.<br><br>د خوځښت او هڅونې رامنځ ته کول:<br>۱- له نقشې څخه استفاده.<br>۲- د یوه جالب تاریخي داستان ویل. | وخت په دقیقې<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۱-٦ د ښوونکي د لوست ورکولـو کړنـې د مفاهیمو او پوهې ور زده‌کول او ارزونه | د زده‌کوونکو د زده‌کولو کړنې | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست په پیل کې د اړوند لوسـت سرلیك په توري تختې باندې لیکي.<br>- ښـوونکی د اړونـد لوسـت مـتن د کتـاب لـه مخې لولي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح او خلاصـه کوي.<br>- ښـوونکی د پوښـتنو پـه وسـیله زده‌کـوونکي ارزوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي څرګندونې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- زده‌کوونکي اصطلاحاتو او لغاتو تـه پاملرنـه کوي.<br>- د وخـــت پـــه شـــتون ســـره دوه درې زده‌کوونکي لوست له یاده تشریح کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست پوښتنو ته ځوابونه**:

۱- ترکمنستان زموږ ګاونډی هېواد او د آسیا په براعظم کې موقعیت لري.

۲- په ۱۹۹۱ زیږدیز کال کې د شوروي اتحاد له ټوټه کیدو وروسته، دغه هېواد خپلواکي ترلاسه کړه.

۳- ترکمنستان د سیمه ییزو همکاریو د پراختیا نظریه د ملګرو ملتونو سازمان ته وړاندې کړه.

**۸- د ښوونکي لپاره زیاتي معلومات**

د ترکمن د توکم او نژاد د ریښې په اړه بېلابېلې نظریې، آندونه او تیوري ګانې شتون لري. خو لرغـون پېژنـدونکي عقیده لري چې لږ تر لږه د حجر یا د نوې تیږې له دورې څخه را پدې خوا پـه دې سـیمې یعنـې ترکمنـستان کـې انسانانو ژوند کړی دی او له هماغه وختونو د نړۍ د یوه کرنیز او د څاروي روزنـې د مرکـز پـه توګـه پـاتې شـوی دی.

د اوږدو پیړیو را په دې خوا دغه هېواد د موقعیت له نظر د وریښمو په لار کې ستره ونـډه لوبـولې ده او همدغـه د لویدیځ او ختیځ د نښلولو لامل ګرځیدلی پـه پنځمـې زیږدیـزې پیـړۍ کـې دغـه سیمه د هـون د قـام او یفتلیـانو د یرغلونو او د ساسانیانو د شاته کېدو له امله د هغوی تر ولکې لاندې راغلې وه.

د ترکمنستان سیمه په اوومې زیږدیزې پیړۍ کې د مسلمانانو تر ولکې لاندې راغله، مرو د ترکمنستان له ښارونو یو مهم ښار و چې د تاریخ په اوږدو کې یې ځانګړی ارزښت درلود. مرو د عربو حاکمانو له خوا د خراسان د پلازمینې په توګه شمېرل کېده او پر ماوراءالنهر باندې د دوی یرغلونه له همدغه ځایه کېدل او لارښوونه به ورته کېدله.

د ترک قبایل په لسمې زیږدیزې پیړۍ کې د لویدیځ په لور د کډوالتیا پر مهال د ترکمنستان په نیولو سره همدلته مېشت شول. د ترکمنستان د جغرافیایي شرایطو پر بنسټ د هېواد په کچه د خلکو مېشتیدل یو ډول نه دي. په دې معنا چې په یوه ځای کې لږ خلک او په بل ځای کې به ډېر خلک مېشت و. دغه هېواد له لوړو غرو او بیابانونو څخه جوړ دی. د سوسیالیستي نظام په کلونو کې ډېر ترکمنان کډوال شول. د ترکمنستان اساسي قانون په ۱۹۹۲ ز کال کې د ۷ څپرکو (فصلونو) او ۱۱۶ مادو په لرلو تصویب شو.

د لا زیاتو معلوماتو لپاره د ایران د بهرنیو چارو وزارت د بین المللي سیاسي مطالعاتو دفتر له خوا خپورشوي کتاب ته سر ورښکاره کړئ.